# آئینہ

افسانے


PROPERTY OF ACKU 7865


PROPERTY OF ARIC

عبیداللہ خان

درومبے ځل ———— ۱۹۹۸ء

شمیر ———— پنځه سوه

کتابت ———— لطف الله خوشنویس

مطبع ————

ناشر ———— عبدالعلی بلال

بیعه ————

---

درک :-

(۱) اداره فکر وادب شیخ ملتون ټاؤن مردان

(۲) عبدالعلی بلال کوټ چارسده

(۳) پروفیسر محمد عثمان گورنمنټ کالج یکه غونډ مهمند ایجنسی

---

ټول حقوق محفوظ دي

---

# تړونه

د پښتو د بې ارزښۍ

او د پښتنو د بې وسۍ

په نوم

عبیدالله خان

دلته کښې عادت دی تور ته سپین او سپین ته تور ویل

زه ورته آینه نیسم په دې ګناه ګار یمه

# پېژندګلو

| | |
|---|---|
| نوم | عبید الله خان |
| زوئے د | شریف الله |
| د زیږیدنے نیټه | ۲۳ فروري سنه ۱۹۲۳ء |
| زیږون ځائے | اتمان زئے ، چارسده |
| استوګنه | کوټ چارسده |
| د مړینے نیټه | ۱۳ فروري سنه ۱۹۹۷ء |
| چاپ آثار | زولئے ، آئینه |

# ترتیب

# خپلے خبرے

زمونږ مشر ښاغلے عبیدالله خان د پښتو ژبے او د ادب د سرلوړي ارماني وو ـ او خپل د دغه ارمان تر سره کولو په غرض ئے تول عمر د خپلو محدودو وسائلو دننه او د خپل استعداد مطابق د پښتو خدمت کړے دے ـ د هغهٔ خواهش وو چه پښتانهٔ د پښتو ټیکل ټستل زده کړي او پښتو د دنیا د نورو ژبو ســره د سیالئ جوګه اوګرځي ـ

ښاغلی عبیدالله چه په کور نئے کښے به ورته لویو وړوکـو کوکوچي ویئلو همیشه د دیني او ادبي کتابونو په مطالعه کښے مصروف وو ـ افسانه د هغوئ د خوښے نثري صنف وو ـ د افسانے د فن په حقله ئے بے شمیره کتابونه لوستلے وو ـ او دا به ئے کوشش وو چه خپل تجربات او مشاهدات په افسانه کښے رااونغاړي ـ د زولئے په نوم د افسانو مجموعه ئے په خپل ژوند چاپ کړه او د دویئم کتاب نوم ئے آئینه غوره کړو ـ دریغه که د هغوئ د پښتو ژبے د نوموړي شاعر، مصنف، محقق او نقاد پروفیسر محمد همایون هـما سره په خپل ژوند لیدهٔ کاتهٔ شوے وے ـ هغوئ د ټیلی ویژن دیو ادبي پروګرام اباسین په حواله هما صاحب شا په شا پیژندلے

وو - او ماته ئے ویئلی وو چه

" زهٔ به دخپل دوئم کتاب "اٹینے" دسریزے دپاره همّا صیب ته وینا کووُم ."

دا زمونږ خوش قسمتی وه چه د نادرخان بزمی سره د ملاقات نه پس د همّا صیب زمونږ سره پیژندګلو جوړه شوه - او بیا هغوئ زمونږ په خواهش د اٹینے دپاره په ډیره مینه یوه علمی او جامع مقدمه اولیکله - ددغے درنے علمی سریزے نه علاوه هغوئ مونږ سره ددے کتاب دچاپ په نورو مرحلو کښے هم لاس امداد کړے دے - دا د دوئ ډاډګیرنه او مرسته وه چه مونږ دخپل مشر عبیدالله خان صیب د وفات نه پس د هغوئ دکتاب د چاپ ارمان پوره کړو

د پروفیسر محمد همایون همّا زوئ عظمت همّا چه لحخیره بخپله هم د پښتو یو زلمے افسانه نګار او د یو ے افسانوی مجموعے "پوره سرے" مصنف دے - مونږ سره د اٹینے په پروف ریډنګ کښے پوره پوره لاس اوکړو - او د کتاب په طباعتی مرحلو کښے ئے مونږ ته ډیرے دکار مشورے راکړے - مونږ د هغه ددے د ومره مینے دپاره مننه کوو .

د پروفیسر همّا د وینا مطابق

" د محترم عبیدالله خان یو پخوانی ادبی محسن ګران مشر قمر راهی او د هغوئ د قند مردان د وختونو یو ملګری لیکوال بناغلی ایاز داوزی د اٹینے

په چاپ کښې د خپلو نیکو خواهشانو اظهار کړے دے او د کتاب د چاپ دپاره ئے خپله درنه رائے پېرزو کړے ده ۔"

زۀ زما ورور مصباح الدین او د محترم عبیدالله خان لور اظهرجان د دے تولو ددنو مشرانو د سېځلو پېرزنُنو د زړۀ د تل نه مننه کوؤ ۔ زۀ د ښاغلی لطف الله خوشنویس هم شکر یه ادا کوؤم چه هغوئ بنۀ په وخت او په ډېره مینه د آئینے د کتابت کار سرته اورسوؤ ۔

خدائے پاک دِ د بره ذکر شوؤ ټولو خواخوږو ته د هغوئ د بے بدله مینے داد او مرستے اجر ورکړی ۔ آمین

عبدالعلی بلال

کوټ چارسده

۲۳ - ۱ - ۱۹۹۸

# عبيدالله خان

# او د هغهٔ افسانے

عبيدالله خان د هشنغر د تاريخي کلي اتمانزو ديوے علمي کور نۀ سره تړون لري . د زيږيدو نيټه ئے ۲۳ فروري ۱۹۲۳ء ښودلے شوے ده هغه د مشرقي ژبو او ديني علومو زده کړه د خپلے کور نۀ د مشرانو د علمي پس منظر په وجه اوکړه او د لسم کولو نه پس د سرحدي صوبے د امداد باهمي په محکمه کښے انسپکټر شو . د سرکاري ملازمت د ميعاد په پوره کيدو ئے هم دد غے محکمے نه د شپيتو کالو په عمر کښے د اسسټنټ رجسټرار د عهدے نه پنشن واخست او بيا د ژوند تر ورستي پادونو په خپل کلي کوټ هشنغر کښے ميشته وُو .

عبيد الله خان يو ډيکلے نُستلے بنيادم وو او د ډيکونو نه ئے ښکاره پته لگي چه هغه د پښتو په کلاسيکي ادب ښهٔ ژور نظر لرهٔ . او ديوے علمي کور نۀ سره د تړون په وجه په مشرقي ژبو هم پوهيدهٔ د عبيدالله خان يو مينه وال

پروفیسر محمد عثمان د هغهٔ د علمي استعداد په حقله وائي .

حاجي صيب په پښتو کښې آنرز کړے وُو خپله هم
ښه عالم فاضل بنیادم وو او ټوله کورنئے ئے هم
ښهٔ تعلیم یافته او علمي وه د هغوئ په
کورنئے کښې دیني علوم ډېره مروّج او متداول
دي چه مونږ په ټوقو کښې د هغوئ کورنئے
نه وړوکے دیوبند وایو - [1]

پروفیسر محمد عثمان د عبیدالله خان د ماما د ځوئ او د تېر
د وورو عبدالعلی خان بلال ملګرے دے . په دغے حواله د هغهٔ
د عبیدالله خان سره پېژندګلو شوے وه د اسے معلومیږي چه
عبیدالله خان ډیر باذوقه او ادب دوست ملګری په بیا موندلو
ډېر خوشحاله وو ځکه خو هغه په خپلو لیکونو کښې ځائے په ځائے
د پروفیسر عثمان ذکر په ډېره مینه کړے دے -

زما په تپوس پروفیسر عثمان د عبیدالله خان سره د خپل ورمبی
ملاقات د هغهٔ د ژوند د معمولاتو ، کړو وړو او د ادبي ذوق په
حقله داسے لیکي .

د حاجي صیب سره زما ورومبے ملاقات د هغوئ
د وفات نه څه کم او زیات اووه کاله وړاندے
شوے وُو . زهٔ په اصل کښې د عبدالعلی خان
لیدو له کوټ ته تلے وُوم خو بیا د غه ورځ هغه په
کور کښې نهٔ وُو - او د ښهٔ مرغه حاجي صیب سره

ليدهٔ کاتهٔ اوشو - دا دَ درنګ شيبے ملاقات وُو
خو حاجي صيب زما ډير قدر اوکړو او ما سره ئے
دخپلے کوټے ترسره زما دګاډي پورے بنهٔ په
درناوي جلب اوکړو.

حاجي صيب به عمومًا ساده سپينے درنے جامے
اغوستے سپينه ټوپئ به ئے په سروه او سپين
څادر به ئے په ترخ کړے وُو. بشکلے سپينه
ږيره ئے وه ددرميانه قدوقامت سپين سيځلے
دروند خوږ مشر ليدے شو. په خبرو کښے
ډير محتاط او په مزاج کښے ئے انکساري وه ،
هميشه به ئے په خوږه پسته لهجه کښے په
مزه مزه خبرے کولے. قدامت پرست نهٔ وُو
خو د نوے زمانے ډيره آزاد خيالي ئے هم نهٔ خوښوله
په پښتو ورک مئين وُو په ځوانو شاعرانو کښے
ئے علي خان ډير خوښ وُو. وئيل به ئے چه د
پښتو دځوانو شاعرانو د شاعرئ څه ډير بل شان
خوند دے خو د ژبے خوږلت او دبيان په سادګئ
کښے په کښے علي خان ته هيڅوک نهٔ رسي.ئه
عبدالعلي خان بلال د وينا مطابق عبيد الله خان دڅه مودے
نه دزړهٔ مريض شوے وُو خو تر اخره وخته پورے ئے ډيک لوست
جاري ساتلے وُو . هر کار به ئے ډير په پام او بنهٔ په سوچ

سره ئے کوُو نکه څنګه چه ئے دژوند په نورو معمولاتو کښې یو توازن ساتلے وُو . دغه رنګ د زړهٔ او د شوګر د مرضونو په وجه به ئے په خوراک څښناک کښې ډیر پال کوُو . دخپلو سپیڅلو خویونو د صفا ستره ژوند ، او د محتاط طبیعت له کبله بنهٔ روغ رمټ ښکاریده او تر ورستی وخته ئے نکه د روغو خلقو ژوند کړے دے . ولے سور د پریوتو وی ، په دولسمه فرورئ ۱۹۹۲ئه پرے ناساپه د زړهٔ چپه راغله او هم په دغه ورځ وفات شو .

(۲)

د عبیدالله خان د افسانه نګار ئے ابتدا د دوانے پیړے ئے په پنځم لسیزه کښې شوے دے دغه د پښتو د افسانوی ادب یو عبوری دور وُو که هر څو په پښتو کښې د کال ۱۹۱۷ئه نه د افسانے په لیک کوتے پورے شوے وے خو دهند د ویشه پورے مونږ سره په ګوتو د شمیر دیو څو خورو ورو افسانو نه زیاتی نور څه نهٔ وو . په پښتو کښې د افسانو ورومبئ مجموعه د نادرخان بزَّی پلوشے ده . دا مجموعه په کال ۱۹۵۱ئه کښې د ښاغلی اجمل خټک د سریزے سره هم دغهٔ په اهتمام د پښتو بزم ادب اکوړه خټک له خوا چاپ کړے شوے وه . بزَّی او عبیدالله خان دواړو د امداد باهمی په محکمه کښې کارکوُو . دغلته د دوئ په خپلو کښې پیژندګلو اوشوه او عبیدالله خان د نادرخان بزَّی سره د ملګرتیا په داړ او مرسته خپله ورومبئ افسانه " غیبی انصاف " د قندَ مردان په څلورمه ګڼه ( اپریل ۱۹۵۸ ) کښې چاپ کړه .

بناغلی قمرراهي د پښتو د افسانوی ادب د غه یادګاری پښبه هم
دد غې ګنړ ے په کر بنې کښې دا سے محفوظ کړی ده.

"نادرخان بزمي لکه دکولمبس ګرځیدهٔ ګرځیدهٔ
نو آخر ئے د چارسد ے په کوټ کلی کښې عبیدالله خان
بیا موندهٔ او پښتو ادب ته ئے د دے وینا سره
اوبخښه "چه عبیدالله خان په معاشره کښې چرته
څه کونړ یا کن پیچ اووینی نو سمدستی ئے سموُلو
لپسے ملا اوتړی. ۳"

عبیدالله خان پخپله دخپل ادبی ژوند د وړومبنو ورځو دداذکر والو
ذکر اودهغوئ دمرستے اعتراف په دے ټکو کښې کوی.

"نادرخان بزمی زهٔ چرته اووے چرته په کال
۱۹۵۶-۵۷ کښې مونږ په پښنور کښے یو ځائے وُو. د
نیکلو د سرے اورله هم دهٔ پوسکے ورکړے وُو. په
ځان د اعتماد کمے وُ چه افسانه به دِ شائع شی
اوکه نه - نو دا بزمی وُ چه دهٔ سره رم د اباسین
کراچئ اود قند مردان میاشتینئ اولیدے دا باسین
د غلام قادرخان اود قند مردان د قمر راهي دداذکرنے
وجه ده. ماهم پوزه توره کړه په ګنی لوهاریم. ۴"

په قند کښې دعبیدالله خان د وړومبئ ذکر شو ے افسانے نه علاوه
بیا ورستو دوه نور ے افسانے سندر لړلے" او"قیصه بُردکه فنکار" په ترتیب
سره په اتمه ګنړه جون ۵۸، او په ددیمه خصوصی ګنړه افسانه نمبر

فروری ۵۹ء کښې چاپ شوے په دغې ورځو کښې د هغه يو څو افسانے په اباسين (کراچئ) کښې هم شائع شوی دی - ددے نه د عبيدالله خان په خپله محکمه کښې منصبی فرائض د هغه د ادبی هلو ځلو په لار کښې خنډ شوی دی او هغه بيا تر يوے اوږدے مودے پورے هيڅ يک نهٔ دے کړے - د عبيدالله خان د غه ورومبئ شپږ اووهٔ افسانے د معيار په کنډه پوره دی او د ژبے ځان ته ديو خوند په وجه د هغه د همعصره افسانه نګارانو د ليکونو نه بېخي يو جدا رنګ لری - ولے سره ددے خوبو او خاصيتونو ، زمونږ د پښتو د هيڅ يو نقاد يا تذکره نګار په ليکونو کښې هيڅرته هم د عبيدالله خان يا د هغه افسانو څه ذکر نهٔ دے راغلے -

پروفيسر محمد عثمان د عبيدالله خان د ابتدائی او د ورستو ورځو په ليکونو کښې د يوے اوږدے وقفے په حقله وائی -

> " دا سے ښکاری چه حاجی صيب د پښتو خدمت ته غاړه ورکوول غوښته خو په خپله محکمه کښې ئے د ترقئ په لار ذمه وارئ دومره زياتے شوے چه بيا هغه د يوے اوږدے مودے پورے ادبی کارونو ته سم نهٔ شو - "

د ځلو پښتو کالو د خاموشئ نه پس چه کله عبيدالله خان د سرکاری ملازمت نه فارغ شونو يو ځل بيا ئے د افسانو په ليک لاس پورے کړو او خپلے زړے نوے دوه نشت افسانے ئے د زولئے په نوم په کال ۱۹۹۵ء کښې چاپ کړے دا د ۱۹۲ مخونو کتاب دے چه په کښې د

پښتو نه کلو او "ژو لنے اوبیتاب" په سرخط د عبیدالله خان دخپلو لیکونو نه علاوه په یو مخ د بناغلی پریشان خټک دتقریظی خط یو "ټو کر ینې" فوټو سټیټ نقل ، په یو نیم مخ د پروفیسر افضل رضا بیک د"سرتکی" او په څلورو مخونو د بناغلی اجمل خټک تبصره ځائے کړی شوی دی.

دژو لنے د اشاعت نه پس کال ۱۹۹۲ء پورے عبیدالله خان پرله پسے افسانے اولیکلے او په دغے دوه کلونو کښے لیکلے شوے خپلے ټولے افسانے چه شمیره ئے یوولسو ته رسی د ائینه په نوم د شائع کوو لو هسه اوکړه - داکتاب که هرڅو د عبیدالله خان دوفات نه پس چاپ کیږی ولے هغه دغه افسانے په کتابی شکل کښے د چاپ په حقله اراده راغونډه کړے وه - ترتیب ئے خپل دے نوم ئے ورته پخپله خوښ کړے وو او دکتاب دپاره ئے "شاه کله داده بله" په عنوان په خپل مخصوص رنګ اوګلورینه ژبه کښے یوه ناویاته دیباچه هم لیکلے وه - ما دخپله اړخه دکتاب په تماشتل د هغهٔ دنوم سره د خان لاحقه سیوا کړے ده - زما یقین دے چه د عبیدالله خان سپیځلے روح به په دے ضرور خوشحاله شی ځکه چه داد هغے خوږو وختونو د یادونو یو رومانی انګازه ده - کله چه د هغه وړومبۍ درے افسانے په قند کښے چاپ کیدے نو هغه عبیدالله خان وو.

(۳)

عبیدالله خان د افسانے په فن یوه پوهه فنکار دے ځکه چه هغه د افسانے د لیک نه وړاندے ددغے هنری صنف په فنی

غوښتنو سره ځان پوهه کړے دے لکه چه هغه پخپله "د زونے"
په پیژندګلو کښے وائی .

"افسانه څه شے دے ، د دے تاریخ تعریف او نور
بنیادی عناصر — دا مقالے رم دیرحمله اُلستے"[٦]

ځکه خواجمل خټک نه هم د عبیدالله خان افسانے د فن په
روایتی چوکاټ کښے راګیر ے ښکاری" [٧] او دا د ومره کامیابے افسانے
ګنړی چه د ټیکونکی د سماجی شعور د اصلاحی جذبے او د افسانو
د سوچه کلی والے ژبے له مخه که چرے "هغه کله نا کله ارادتاً یا
غیر ارادتاً د افسانے د فنی چوکاټ نه تجاوز هم اوکړی نو د غه
څه عیب نه ګنړی." [٨]

د عبیدالله افسانے د سوچه او سپیځلے پښتو ناویانه نمونے
دی هغه د خپل ټیک د خوږو جملو په لړ ئے کښے د پښتو خوندُور
متلونه بند په بند لکه د ملغلرو کښیلے دی .

د پښتو نوئے پوهاند ښاغلے ایاز داوزے د اسے نثر ته په خپله
ژبه کښے د ټیک روان بهاند او غورزنګی اسلوب وائی . د عبیدالله
خان د نثر سپیځلتیا او د غے غورزنګی اسلوب په خپله لمنه کښے
د هشنغر د اولسی محاورے تول خواږه راغونډ کړی دی په
هشنغر کښے د دغے روایت ابتدا د ملا احمد ( ۱۸۹۰ - ۱۸۸۳ ) د
آدم خان درخانئ د قیصے نه شوے ده او بیا د ماسټر عبدالکریم
( م — ۱۹۶۱ ) د افسانو د غنی خان ( ۱۹۱۶ - ۱۹۹۶ ) د کړے وړے په
عنوان د ټیکونو او د ډاکټر اعظم د لښے او د هغه د ډرامو د ژبے

په حواله مونږ ته رارسي د عبیدالله خان افسانو دغه روایت نوی په وړاندے بوتلے دے او دهغے په تاندولو او قدرؤلو کښے ئے لوئے کار کړے دے.

"ژوندۍ" او د "آئینه" ټولے افسانے د لیکونکی په ذاتی مشاهداتو ادانړه دی او بنیادی خاصیت ئے دادے چه هغه چرے د خپلو افسانو د موضوعاتو دپاره د ذاتی مشاهداتو د دائرے نه د وتو کوشش نهٔ دے کړے بلکه خپل هر لیک ئے د مقامیت او د پښتو داولسی ژوند په رنګونو کښے رنګ کړے دے ځکه خو هغه چه څه وائی په زړهٔ اثر کوی او هره افسانه ئے د تصنّع نه پاکه د پښتنو د اولسی چاپیرچل په اوریجنل ( ORIGINAL ) اوسو چه فضاء کښے ژوندئے ښکاری. د هغه د افسانو په لوستو داسے محسوسیږی لکه د هغوئ ټول کردارونه زمونږ لید لے کتلے او د سترګو نه وتے وی ځکه چه دا د لیکونکی د خپل خوا او شا نه راخستے ژوندی کردارونه دی چه هغه ئے په نفسیاتو پوهیږی او د هغوئ د نفسیاتو ژورو ته د کوزیدو هم ښه پوره توان لری ځکه نو د هغوئ جذبے محسوسات او تجربے راته په داسے اثری ډول وړاندے کوی لکه چه دا زمونږ د خپلو تجربو او محسوساتو عکس وی. عبیدالله خان د خپلو افسانو واقعات او کردارونه د افسانے دپاره د تهاکلی شوی نصابی قواعدو په چوکاټ کښے په زور زور د ځائیولو په ځائے د افسانے هنر ( TECHNIC ) د خپلو افسانو د کردارونو او واقعاتو تابع کړے دے، نو په دے وجه که مونږ "ژوندۍ" او د "آئینے" افسانو

تہ دپښتنې چاپیریال نہ زیږیدلے او راخستے پښتنہ افسانہ اُووایو نو څہ ډیرہ بے ځایہ بہ نۂ وي . کیدے شي چہ پہ ځنې ټستونکو دپښتنې افسانې دا اصطلاح ښہ نۂ وي لګیدلے او پہ داسے وختونو کښې چہ کلہ دنورو ژبو افسانہ دفنې تجربو پہ ډګر ډیرہ پہ وړاندے تللے دہ - زما دا اصطلاح دیو محدود فکر نتیجہ اوګڼړي ولے ما دا خبرہ ښہ پہ شعوري ډول کړے دہ ځکہ چہ پہ یوہ داسے معاشرہ کښې چرتہ چہ دخوانګئې شرح لا دپنځۂ فیصدہ نہ ہم نۂ دہ اوړیدلے او دکومے معاشرے غوړي چہ لا تر اوسہ داولسي قیصو دخوند سرہ اموختہ دي نو هغوئې بیا دبے پلاټہ او بے قیصو (storyless plotless) غونډے دعلامتي اشارتي اوکنایتي افسانو پہ نوم دتجرباتي جرندو تہ پہ اوتي تیکونو څنګہ پوهیدے شي نو ځکہ زۂ وایم چہ زمونږ دسادہ اوکم علمہ اولس دپارہ پہ دے وخت کښې دعبیداللہ خانؔ تیکلے پہ حقیقي فضاګانو کښې زیږیدلے هم دخپل کور پښتنہ افسانہ موزون او مناسب دہ -

دعبیداللہ خان دزړونوؤ افسانو ترمینځہ لکہ چہ وړاندے اوویئیلے شو دڅلویښت کالو یوہ اوږدہ زمانہ پرتہ دہ . مونږ ګورو چہ دهغہ دهلکوانے تیکونہ سرے لمبے او غیبي انصاف تہ دتجربو ، مشاهدو او دژوند دکړیکونو نہ پہ راتیریدو چہ کلہ څلویښت کالہ پس دکنډرو فرش بند ئے شہ تہ رارسي نسو د پروفیسر محمد عثمان دوینا مطابق دومرہ ابهام راپیدا کړي. سلہ چہ

لُستونکے په یو دوه کښے حیران کړی چه دغے یک ته افسانه اووائ اوکه ساده انشائیه ( ESSAY )، ولے ما ته خو داهم ډیکونکی د اصلاحی جذبے د اظهار یو رنګ ښکاری هغه چه کله د خپلے دغے جذبے په چپه کښے د مقصدیت اوچ سورا ړا ته ورګډه شی نو که لُستونکے هر څو په ذهنی توګه د هغه د یک د روان بهاند، او په متل ښپے لګیدلے د متل د خوږلت په بهیر کښے دغے اوچو ته په ورګډیدو اماده شوے وی خو دافسانے په نازکو اوږو دسپور مقصدیت دغه بار بیا هم لوکوټی دروند ښکاری او لُستونکے دا سے محسوسوی لکه چه دافسانے او انشائیے رنګ او خوند په خپلو کښے سره غاړه غړتیٔ شوی دی. ځکه خواجل ختک د عبیدالله خان ځنے افسانو ته مضمون نما افسانے یا افسانه نما مضمونونه ویٔلے دی.[12]

عبیدالله خان دغه هڅه د خپلے افسانے داصلاحی رنګ د تاثر قائم ساتلو دپاره کوی دهغهٔ د فن غرض او مقصد د ژوند ترجمانی او عکاسی ده. په دے لار کښې هغه کله نا کله دافسانے د تکنیکی غوښتنو نه په دومره کېدهٔ چه هغه ورته په خپله خوند وره ژبه کښے د اووهٔ دم کړے کرښو نه سراوښکل[13] وائ. بیخی یو جایٔز عمل ګڼړی.

د عبیدالله خان دغه خبره نیغ په نیغه او په پټو سترګو د ردکولو په ځائے پکار ده چه مونږ په هغے لوکوټی غور اوکړو. تکنیکی غوښتنے که چرے د ابلاغ په لاره کښے خنړ کیدو ته پرېښودے

شي نو د تکنیکي غوښتنو د سره ژار شوے د ابلاغ نه عاري یو ده افسانه د لستونکي هیڅ پکار نهٔ راځي نو ځکه لیکونکي ته په هر ادبي صنف کښے د خپلے خبرے د ابلاغ دپاره د تکنیکي غوښتنو کلکو قاعدو کښے لږه ډیره نوې پیدا کوول ضروري شي هسے هم لکه چه وړاندے اشاره شوے ده ۔ د عبیدالله خان ټولے افسانے په فني ژبه کښے کرداري دي هغه د خپلے افسانے تنسته بوده د کردارونو نه راچاپیره کړے ده ۔ د غه کردارونه د غه قیصے د ځان سره په وړاندے بوځي او په خپل عمل ( Action ) ځان ته ماحول ( situation ) راپیدا کوي ۔ د هغهٔ د افسانو ټول کردارونه بے شانه خبرلوځے دي ۔ په دوئ کښے د هر یو سره د متلونو سنه ډیره ذخیره ده ۔ د غه کردارونه د خپلو خبرو په وضاحت اود واقعاتو په رنړولو کښے خونده ور او اثري متلونه پکار راولي هغه د افسانے بند بے وند په وړومبي نظر د ښکاره کوولو په غرض "د آشنه" د هرے افسانے نوم د هغه د مرکزي خیال سره سم په یو موزون متل اداسره کړے دے ۔ د هغه په خیال متل د خپل معنویت او جامعیت په وجه بنغ په بنغه زړهٔ ته ورکوزیږي ۔ د غه شان د افسانو اختتام ئے د پخوانو شاعرانو په یو اثري شعر کړے دے چه دا سے د افسانے مجموعي تأثر افسانه لستونکي ته ور اورسي۔ دا د عبیدالله خان د تکنیکي تجربو خپل رنګونه دي۔ د تاند ذهن فنکاران د خپل فن د اظهار دپاره تل د نوي لارو په لټون وي. لکه زمونږ ذهین لیکونکي د خپل هنري جدتونو په داڅخیله

خبره زمونږ د پو هیولو کوششونه کړی دی نو بیا د مونږ د هغه په افسانه کښې د تکنیک د نصابی غوښتنو په کمی زیاتی و نه تندے تریو کړو.

د عبیدالله خان د افسانو د یو یو په ذکر په ځائے زۀ به د دغے افسانو د مجموعی تاثر په حقله دا اووایم چه د هغه لیکونه د پښتنو د اولسی ژوند یو واقعاتی ریکارډ دے چه په کښې د خپل اولس په نبضونو پوهه لیکونکی د هغوئ د معاشرتی کړو وړو په بے شمیره اړخونو رڼا غورزولے ده. په دے رڼا کښې مونږ ته د بے ځایه سیالو، د عبث او نقصانی تربګنو د پښتنو د جاهلانه رسمونو، د خپلے ژبے د بے ارزښته عوندے په موضوعاتو بے شمیره تصویرونه ښکاری. زۀ دلته د عبیدالله خان د فن د پاره د حقیقت نګارئ سکه بند نه ټکے چه عموما د دا سے رنګ د افسانو د قدرولو په غرض وئیلے شی نه وایم ځکه چه دا ماته د هغه افسانو په غورزنګی اسلوب کښے بیان شوی د معاشرے د ژوندی حقیقتونو د پاره یوه جامد اصطلاح (STATIC TERM) ښکاری او نۀ دا ټکے د دغے افسانو د اصلی روح او د بنیادی خوبو څه زړۀ پورے ترجمانی کوولے شی. هغه خو د خپل اولس په درد دردمند د ویښ ذهن، حساس زړۀ او د تیرۀ نظر یو ژوندے فنکار دے چه د افسانو په آئینه کښې ئے د خپل اولس په حال د ژړیدلی زړۀ او د دردیدلی احساس ژوندی عکسونه په ځلا ښکاری

زمایقین دے چہ زموږ د نثري ادب دد ے قهرمان ته ارزښتناک او ژوند ے فن به دخان سره خپل نیکونکی ته هم یو دوامی ژوند ورکړي .

محمد همایون هما

هسکه مینه شیخ ملتون تهاون

17-1-98



PROPERTY OF ACKU 7865


## حوالے

---


۱- د پروفیسر محمد عثمان خط دهما په نوم لسم مئی ۱۹۹۷ء

۲- هم دغه

۳- قمر راهي کرښې تند څلورمه کنړه مئی ۱۹۵۸ء

۴- عبیدالله خان زولنے ۱۹۹۵ء ص ۲۳

۵- د پروفیسر محمد عثمان خط دهما په نوم

۶- عبیدالله خان زولنے ص ۱۵

۷- اجمل ختمک تبصره زولنے ص ۱۳

۸- هم دغه

۹- عبیدالله خان زولنے ص ۲۵

۱۰- عبیدالله خان زولنے ص ۲۵

۱۱- د پروفیسر محمد عثمان خط دهما په نوم

۱۲- داجمل ختمک تبصره زولنے ۱۰

۱۳- عبیدالله خان ائینه شاه کله داډبله ص

۱۴- د ایاز داودزی خط دهما په نوم ۱۷ جنوری ۱۹۹۸ء


---

# شاه کله دا دِ بله

دلته کښې عادت دے تورته سپین او سپین ته تور وئیل
زهٔ ورته ائین نیسم په دغے گنهگار بیٔمه

(نامعلوم)

عثمان صیب دسلام کلام نه مخکښې په چغه شو چه یا هلکه!
بیا دِ په درم سال کښې خټے شروع کړی دی . دمشرکښ په
خبرو دِ هډو غوږ نهٔ کیږی . سره د پوهے هم په هغه سوره
کښې بیا گوتے منډے . کوم کښې چه مخکښې مار چیچلے وے . خدائے
خبر چه په تا څه شوی دی . کډیږے ړندو ته . دول وهے
کنړو ته . څوک درته غوږ نهٔ ږدی او تا زوک جوړ کړے
دے .

پریشان خټک صیب د دوئے په تبصره کښې دیو "څوکرښے"
دلاندے لیکی .

" دے کار ته ملا تړل ځان له کارلټول دی ."

ځانله بیا کارګوره . مه ځانله کارګوره او مه پیسو له لار .

عثمان صیب خبرے دِ بنے دی خو د رضامهمندی صیب تبصره چه

کومه هغه په "زولنے" د ائینه حبان جون ۱۹۹۶ء کبنے کړے ده ـ تا به

هم کتلے وی هغه لیکی ـ

" ادیب ته د معاشرے ترجمان وئیلے شی چه هغه

په کومه معاشره کبنے اوسی ـ د هغے یو جُز وی خو دا جُز

ډیر حساس او بیدار وی ـ او په معاشره کبنے کومے ناړاے

وینی ـ نو نور خلق خو ترے چپ پاتے کیدے شی ـ خو ادیب

چپ نهٔ شی پاتے کیدلے ـ او چه د غه احساس ئے لیونے

کړی او د سر په کتوئی کبنے مازغه په جوش شی ـ نو

بیا د وخت پابندو ته نهٔ گوری ـ او لکه د منصور په

دار ورختل ورته فرض شی ـ خُکه خپل قلم راواخلی

او جهاد ته مخ کړی ـ د قلم د څوکے نه د تورے کار

اخلی ـ "

د سر په کتوئی کبنے ړم مازغه په خوټکیدو دی بړاس

به هله کینی چه قلم کاغذ راواخلم ـ دا دوره د رمسال کبنے خپے

نهٔ دی ـ

قلم کاغذ نه خو تا څوک منےکئی نه ـ راخله ـ زر خُله

ئے راخله ـ لیکه ـ بنه لیکه او ډیر لیکه ـ دلته د پښتو ادارے شته

هغوئی ته ئے لیکه ـ چه د زړهٔ بړاس دِ کینی ـ تهٔ چه کتاب لیکے ـ زهٔ

پرے پوهه یم چه داستا دوس کارنهٔ دے هسے د زړهٔ زور کیئے ـ

په دے هر څه پوهه یم ـ خو تا ته پته نشته ـ چه دا ادارے

د هندوانو تنورونه دی - دوی خپلے ډوډئ پخوی - په پردو پلتینړی

دا زړهٔ نهٔ وایم - رضامهمندی صیب هم په دغے تبصره کښے بنهٔ په

ارت مټ وشلے دی - د مینے جذبو ته دوس او بے وسئ دیوالونهٔ

مهٔ اودروه - ځکه درته وایم - سه

بیه زاهده! څهٔ پوښتې چئ څه رنګه

ستا په کښے څهٔ کار دے خو بس خوښ رم دے

(اباسین یوسفزے)

مولانا عبدالقادر صیب مرحوم او مغفور د "قمر پلوشے" په تبصره

کښے لیکی -

" دژبو په میدان کښے هغه ژبه کمته کوی - چه په

هغے کښے لوړ عالمان فاضلان او ادیبان پیدا شی - دیر

لیک او کړی -"

نو اوس تهٔ وایه - که نورلس نور دی اوشلم راشی - دا به بده

وی - ستاسو ولے په زړهٔ درد دے - بنه ده په رښتیا اوُراغلے -

نهٔ رم په زړهٔ درد دے او نهٔ پهٔ خیمه - تهٔ اوس کنے په اوچتو

اوچتو کښے ځان شمیرے - هغه مجئ د سوات دی هغه تهٔ نهٔ ئے

عثمان صیب! سرے په وس پوه دے -

کور به بهٔ دی میلمه ته ص څه چه حاضر وی"

زهٔ ورته د زړهٔ غوښے بهٔ دم - په خپل یقین رم دُر او کوهر دابرسیره

کړی دی - اوس -

ـه

قدردان جوهری بویه چه ئے واخلی
حمید څۀ دُر اوکوهر کړۀ رابرسیرۀ

(رحمید بابا)

تۀ چه څۀ وائے - وایه - کۀ د زړۀ غوښے بـ دے - اوکه برسیرۀ بـ دے دُر اوکوهر خونابیناؤ ته.

په دوکان د نابیناؤ جوهریانو
خر مهرے لعل وکوهر درے وارۀ یو دی

(رحمٰن بابا)

عثمان صیب دکور خور لور قرمیړنه وی - ځکه بے واکه خبرے کئے . ـه

باز په جاله کښے چا نۀ دے پیژندلے
قدرنشته دحافظ په الپورئ کښے

(حافظ الپوریٔ)

که بنهٔ بیکم اوکه بد - کۀ دچا خوښ شو نو هغوئ له رسیکلے دے - چارئے بنه - کورئے آباد - اوخدائ دۀ کۀ دچا طبعے ته برے نۀ وت - نو ځانله رِ بیکلے دے - ددوئ هم چار بنۀ، کورئے اباد . نۀ رِ په چاموتی خرڅ کړی دی اونۀ چا دموتهو په غلا کښے نیولے یم . دوس وس خبرۀ دۀ.

خپله وینه به په فن کښے رانچوړ کړم
په غزل کښے به رنګونه راپیدا کړم
(اباسین یوسفزے)

احساس چه بیدار او ژور وی - دجذباتو انتها وی - وی لیونئ مینه او د ځیګر وینه په افسانه کښې د رنګ پیدا کولو د پاره چه بچوړشي نو بیا - سه

چه تمام د خپل ځیګر په وینو رنګ شي
د رحمٰن خبرے ځکه رنګینه دی

(رحمٰن بابا)

عمر دِ پښا شوے دے - د مرګ استاذی دریسپے کرځي - په زور ځان دِ ځان لیونے کړے دے - د هر څه یو وخت وی - خوند په وخت کوی - زړے اسپے سره ترپکښې خوند نهٔ کوی - په دے وخت کښې افسانه لیکے - په دے خون ایمان ئے وایه - تاته به خلق روغ وئ اوکه لیونے - سه

عمر دِ کوتاه دے امید ته لا کوتا تر کړه
ولے تناؤ اوبد په دے لنډ میدان کښې غړے

(حافظ الپوری)

عثمان صیب د خلقو اختیار دے که راته روغ وائی او که لیونے د اختیار خاوندان دی - زهٔ خو د خاپیرو قیصے نه لیکم - زهٔ خو ئے څه مقصد له لیکم چه لکه دا "امر دے او دا نهی" خدائے دِ اوکړی چه څوک ئے تعمیری اثر واخلی - نو دچا به دنیا بنه شي - او دچا به اخرت - بنه بنه - رب دِ همت دړکړی - لیکه زر - زر هسے نه چه دسا دا اوم تار د خدائے مهٔ کړه اوشلیږی نو بیا هم یاد لره - سه

ه

د دنیا چارے چا نهٔ دی پوره کړی
عاقبت ترے پاتے کینږی ګرے وږے

(حافظ الپوری)

دریم ځل حق دے - اخری درته یو ځل بیا وایم - داوبنی پشا
به دِ سپے اوخوری - ددے ځائے ناسته یاد لره چه چاله ئے لیکے
مړده دپښتو کتاب ثوک اخلی نه - لوستل کتل اودهغے سنه
تعمیری اثر اغستل خو لوبه خبره ده - زړهٔ چوے نو چوه -
چه چاله به سبه شی - زما دایره ده چه ستا به دے "امر
او نهی" کینے به د نسوارو پوښړئ خرڅیږی - مزله به ستا
په سر وی -

عثمان صیب ! هر څه چه وائے نو وایه - خو ه

نهٔ دے اوریدونکے علیخان دخپله عشقه
څله ناصحانو دبار مخے ته توکئے

(علی خان)

نا امیدی کفر دے - که داسے خپه په خپه کښیناستو ! نو څه
دِ خیال دے - داروستے کول به راسپے اړولے لاسونه نهٔ اوچتوی.
ټول پښتانه داسے نهٔ دی - په زرو کینے خو به لس وی کنه
چه کتاب به ګوری - خیر دے که په بیعه نهٔ اخلی - تهٔ
اوس چارکوه - خپل لیکل په فکرونو خروب کړه نو دومره
بے پته به نهٔ وی - ځکه خو اباسین یوسفزئ په غور ځنګونو

کښې وائي. ـه

آباسین په فکرونو ئې خروب کـه
په دے خلقو کښې څه پټ به خاماوی

پوهـ شوم ناجغه په جغ شوے نهٔ دے اونهٔ په کانړی
ڈوره انغـلی - داوچې نه په لمده پریوځې - چه ځان ته
پړ نهٔ وائے - څوک به د څه پړ کړی - دانګله سیند دے چه
ارمان دِ اوړوی چه اوبه دِ ترغاړے راشي - مرورے به لکه
د مچ وزرے - نو بیا به وئے چه عثمانه! ستا رِم نهٔ منـل.
نو وخت به تیر وی - بنه ده - څه - اوس وایه دکتاب نوم به
دِ څـهٔ وی - نوم خو ورله " ائینـه " بـِدم - هغه مخکښې کتاب
زو لنے چه چاپ شو کنه - نو یو دوه کسه ساینو لی راغلل چه
دا قیصے دِ مونږ پورے جوړے کړی دی - ماوے نه - ـه

خپـل خپـل مخ په کښې لیدهٔ شي
کـهٔ څوک زشت وی کـهٔ زیبـا

(رحمٰن بابا)

زړه کښې رِم راغلل - که چرے ڈونـد وفا اوکـړه اودبل کتاب
توان توفیق خدائے پاک راکـړه نو نوم بـه ئې " ائینـه " وی.
چه څوک ئې ګوری چه ورته په کښې ځان ښکاری.
مرده "هنداره" نوم نه دِ ورله ایښے وو - څه ادبی شان
راته ښکاری - خوښ خو زما هم وُو - خو دا د ریډیو مستقـل
پروګرام دے - خلق به وائي چه پریښ ده - زوړ سرے دے.

منکر نکیر هم د زړه مړی نه ویزارنه اخلی . " ائینه " نوم ځکه خوښ دے چه څوک خو به ځ چرے لاسونه ښکل کړی کنه

خدائیګو چه لاس ئے د ښکلولو دی
چا چه ائینه راجوړه کړے ده

(اباسین یوسفزے)

بس که بس که . ځان ته ترخز مه وهه . خدائے خبر چه د هغه مدعا څه وه . یه سړیه ! خوله دربانده تیرے ده . که لږ پرده شوے وے نو ښه به نهٔ وه . خپله خوشاع نهٔ یم . نو دخلقو اشعار دِ هم نه پیرزو کیږی . بده به هله وے چه پے ما اوے دعوے کولے . د بده برخه ځ طرید خوښ وی ځکه ځائے بے ځایه لیکم .

افضل رضا صیب په "زولنے" د "سرتیکی" دلاندے لیکی .

" دهٔ دے افسانے په آخر کښے چه کران لیکوال دعظیمو شاعرانو دمشهور شعرونو نه د قیصے تاثر قائم ساتلو خپل لوستونکی ته یو ځل بیا په خوندوره طریقه دخپل مطلب خبره کولو دپاره منتخب شعر یا مصرعه لیکی . هغه یو ښکلے کوشش دے ."

اجمل ختک صیب خپله تبصره کښے لیکی چه .

" د عبیدالله فن په روایتی چوکاټ کښے بند لیدے شی نو ځکه ارادتاً یاغیرارادتاً لږ ډیر تجاوز ئے عیب نهٔ اودریږی ."

دا د اوکيږنه ده . نوځکه زه د هر افسانې سرخط يو متل کړ . متل
زما په دې خوښ وي چه يو خو ډير خوندور وي او زړه ته نيغ په
نيغه ورېوځي . بله دا چه د افسانې بند په ونډ په رومبي نظر
ښکاره شي . که د افسانې تنسته بوده پرې ريخې ريخانګې کيږي نو .
او د روايتي چوکاټ نه راوتل که عيب نه ؤ اودريږي نو زه ددې
اووه دم کړو کربنو نه به سر اوکاږم .

پاک رب دِ اوکړي چه څوک ئې بد اونه ګڼړي .

بنيادم نه غلطئ کيږي . سل خدائې پاک معاف کوي .
که دوستونکو کوم غلطئ اوليدې نو د معاف کيدو طمع لرم
بله دا . دا افسانې دي . که چرته د ځايونو او د کردارونو
نومونه که اتفاق سره چاسره جوړښت خوري . دا به نه
عمداً وي او نه قصداً وي . دا جوړښت به اتفاقي وي . ځکه
د اکاهو نه د بخښنې سوال کوم .

ے

د رحمٰن غلطئ او بخښې اے خدايه
دا اوترو چارے نه دي په حساب کښې
(رحمٰن بابا)

زړه سترې کاروته زه لاس اچولے دې . يو خو عمر پښتا
دې بل د صحت د لاسه د منو وترو نه پاتې يم . بد قسمتئ
نه چه کومو کسانو راسره په رومبي ځل لاس پښې خوزول . هغوئ

بیخی یا ډانګ پېټلی بنه په ډاګه اووے - چه نه پېږبوسو کېنې اوبهٔ بوځو . نهٔ دِ تیاره کېنې ساتو . نهٔ سوتې په ډانګونو وهــو. سپینه درته وایو چه په کوم موږ ی مو مخکښې تیندک خوړلے دے بیا سره دپو هے په دغے موږ ی تیندک نهٔ شو وهلے . که کولے شے . کوه . ســرتند ے به په خپله و هے . یو پروفیسر عثمان صیب دکرهی کریم داد د ے چه پوهه یم چه د ناخوالئ سرږقه وی . دغه هم ډیره ده . ځکه د زړهٔ د اخلاصه شکریه ئے اداکوم . سه

راشه مخ په ائینه کـه
چه خیره شی درمعلومه
(خوشحال بابا)

# کنزبه هرڅهٔ وائی

# که مُلا فاروق ئے اومنی

دجمعے ورځ وه - نمر ته رم کښته راښکلے وو - دخېرو بیاج وو - ځکه یو خدائے بنهٔ دے - کهٔ زړهٔ پورے ټوک راغے نو سات کرئ به بنه تېر شی . ددے فکر په تهال ځنګیدم چه یو دروند تهوخے رم تر غوږ د شو - اوبو کنیدم - چه بره رم اوکتل ددیره شوقه ئے یو اوږد سلام واچو - ماوے دا اختر دکومه . مرادے وو - په بنی اړخ به پاسیدلے وو - څه بے لچه خوشحاله وو . خوله ئے دخندا نه تله راتله ماوے راځه راځه . مرادخانه هر کله -

خان جی ! لکه په چغه ئے اووے - چه د زړهٔ ارمان رم اورژیدے - ددیره وخته نه لګیا وَم . نیکلِ رم کول - هغه واړه افسانے پوره شوے - اوس رم خیال دادے چه چاپ ئے کړم -

که کتاب چاپ کول اسان کار وی . نو ځه - ورځه - ورلیے

اوکۀ مانه څه تپوس او صلاح غواړے نو کورنۍ زۀ په ډیقیصو پوهیږم نه - هغه که بخت بلند راغے نو هغه ده دیګ ځنځۍ ده - په هر څه پوهیږی .

خان جی ! هغه خو دادیلے غوبارے دے - دزرو روپو غوا به دکمره اورغړۍ - اوکۀ پوهه شو چه مانه ئے کړه ده - نو بیا خو به نکه د کارغه اودسماتے پیر تاستره سسه ئۍ - بے کرخو کنږ ولے دے . خو ځه چه تاسو وائے نو .

بخت بلند په دے کښے دحجره په نوایه راښکاره شو. خان جی وے راځه . عمر ډیر دے - هم ستاخبرے موکولے - وے ئے پوهه شوم دمرادی به څه خر په ختمه کښے بوخت شوے وی - خان جی ! ډیر هوښیار دے . چه حاجت ئے وی . نو په ختمو کښے سملی او چه پوره شی . نو بیا ئے سترګے برګے وی .

بلندیه ! داسے نۀ ده - یم پرے لګیدلے دے . خوږخوږ ځان کره وی . تانه ځم غواړی نا. خوخبرے ورسره دخیر اوکړه - مرده کتاب چاپ کوی .

نه خان جی ! داخو مجلس کښے خوند پیدا کوو . مرادے خو زمونږ دسترے دا اوربل کل دے - دهغهٔ دپاره حلال کړے چرګ یم - تاسو کور دچایو وینا اوکړۍ . خبره خوږه او درنه ښکاری - وایه مرادیه ! چه هیر دِ نۀ شی .

بخت بلندہ ! دھرچا عجیبه عجیبه او جدا جدا شوق وی ۔
څوک په کلی کښے کرځی او کار ئے بس داوی ۔ تاوے ۔ ماوے ۔ دوړئ
ئے هله هضمیږی چه دوه کسه چاړے غوښے کړی ۔ څوک په دے
غضب اختہ وی چه لارے به تنګوی او پردئ پولے به وهی۔
نو ښځینږی به په پردی کفن کښے څوک شاعر وی غزلے لیکی.
نظمونه لیکی او څوک لکه زمونږ قیصے لیکی که څه شرشئ رتے
مقصد په کښے وی ۔ نو دا لویه خبره ده جزا سزا په نیتونو ده.
الاګړه غوړه مراد خانه ۔ زهٔ ستا په دے خبرو رسم نه ۔ غږیږه یو ځائے
وریږ ے بل ځائے ۔ ځان مشهورے چه څوکسه دِ اوپیژنی ۔ لکه
چه تاهم کتاب اولیکه ۔ نو دا ئمتو دِ په سوری اوتړه ۔ یاهلکه!
دے نه خو به ښهٔ داوی (خدائے مهٔ کړهٔ) جماعت کښے اودسمانے
اوکړه ۔ چه دنیا دِ اوپیژنی ۔ هغه مچئ دسوات دی چه غل
ئے شات دی ۔ داستاکار نهٔ دے ۔ چه غیلے نهٔ شے نو لکئ
دنړه مه اوړه ۔

خان جی ! ما درته نهٔ وو وئیلے چه په بلندی کړئے خیجی نه ۔
دے لیدے نهٔ شی چه مرادے دِهم دسړو په قطار شی.
که سل ئے نور وی یو به ئے دمور وی ۔ که ته زرها وے چه
ښهٔ سړے دے ۔ وی به ۔ خو مازیګر کښے تے یوه خیجی ۔
مرادیه ! دخوے منګی اوبه خوړے وی ۔ تهٔ لا په سوله پندره
نه ئے ۔ پوهه به هله شے چه سا دِ غړئ له راشی ۔ واوره ۔
وادهٔ کړی حال نهٔ وائی اولونډان خبر نهٔ دی ۔ کنی نو تا به د

کتاب دچاپ نوم په خولے اغستے نهٔ وو - دا دخپو گوگوشتونهٔ دے چه په سره دودئ به کیږی -

یا هلکه بخت بلنده ! خدائے مهٔ که - د مرادخان نه خو دِ دډزو سپے جوړ کړو چه په کوټه ئے ننباسے - څهٔ دِ مطلب دے کافر شو چه دکتاب دچاپ خبره ئے اوکړه - حدیثو نه پرے راکاږدے - هغه غریب درنه صلاح غوښتے وه - او تهٔ ورله په زړهٔ کښے لتے ورکوے -

خان جی ! داسے نهٔ ده - دواره ئے ډب ته نهٔ شم غورزولے لانبوئے زده نهٔ ده - پرین ده چه چرته معلوم شی - زما دغه دشمن نهٔ دے چه بدلے ترے اخلم - اوس به ورله لکه دچرسیانو کویږدن اوکړم او دا دهٔ دپاره بیا په پردو درونو پروت وی - زهٔ دا نهٔ وایم چه زهٔ جوارگر یم - خدائے دِ د خلقو بچے هم جوارگرے کړی - خو نه مرادے خو زمونږ ځان ځیگر دے. ددهٔ خفګان زمونږ خفګان دے او ددهٔ خوشحالی زمونږ خوشحالی ده. ددهٔ ذهن دے ته تیاروم چه په ښه او بد کښے تمیز اوکړی - او چه سره دپو هے کوم کار ته لاس اچوی - هغه به په ډیر فکر او سوچ وی نو بیا به پرے پښیمانه کیږی نه -

بخت بلند ! خبره د ایساب ده - چه زدوی نو زاری د څه - مرادے چه هاتیان ساتی نو گڼی دروازے به ئے غټے نهٔ وی -

مرادخانه خان جی څهٔ وائی - ستا په ځمن کښے خو دا ایساب

درک نشته - وایه چرته دِ مونتے دی - که برگے دِ ارغړولے دة.
اوکه نه پتے - دکتاب چاپ له خوپیسے پکار دی - اوس خبرة د
ایساب کوة - چه په لنډو ئے خلاصه وُو - مرادی د بڼے نه
یو سور دومال کښے تړلے غوټه رااوښکله چه ئے پرانسته - نو په
دبلی کښے دغاړے امیل وُو - وے ئے دا د فولادی دمور دے.
خرڅ به ئے کړم چه کتاب چاپ شی او خرڅ شی نو هغےله به هم
دا سے امیل جوړ کړم - خان جی او بلند ے دواړه سهوة شو.
او په تندی ئے په سور ژی خولے راغلے - بلندے خوگویا نه
ککړئ دة - ښه دة چپ پاتے نهٔ شو - او ئے وے - هلکه
مرادیه - کهٔ د فولادی مور خبر شی چه امیل ورک دے - نو
بیا - مړدة څهٔ ورځے به خفگان وی - ما به هم ازمرے دبریتو
نیولے وی او ټوله مزلمه به د هغے په غاړة وی .

چه څو ورځے تیرے شی نو دوتی باچا له به ئے راولم
هغه به وړوکی هلک له نوک تورکړی - په کښے به راشی - تورة
ښځه دة - چیته دة - پیرة دة - گلدارے جامے ئے اغوستے
دی - زهٔ به ورته د قهرة سور په یوة چغه یم - چه
بدبختے - تاهر وخت په اگنړ کښے په پړی پنړونے اچولے
وی - او په څه څه خبرة کله مور کړة - او کله خور کړة - کهٔ
تیکاوے وے - نو ولے به دبکس نه امیل چا اوړهٔ - اوس گرځه
تورے چیتے او پیرے لیسے - څو ورځے خو به اوگرځی - اخر به
ئے زړهٔ صبر شی .

مرادیه ! ځان نه ماشوم مهٔ جوړوه - بوړبوړقئ خو دمړی
حال وائی او امیل به اونهٔ وائی - چه مرادی اوړے یم - پوهه ئے
چه یو په ګوړی' بل په ډوډی' خو به دځان سره مورکړه بوځی.
خو ددے پاتے دنولو غویبے سره به څه کوے - دهغوئ قنړے
او دسماتی به پاکوے - اوکه مزدوری له به ځے - اویا به
په جنګی محله کښے په کاتبانو او په پریسونو به ګرځے.

بلندیه ! ملنړے مهٔ کوه - ولے داکتابونه به خرڅیږی
نه - ولے به نهٔ خرڅیږی - سندهٔ پنجاب ته خو به ئے نهٔ
اوړے - لهٔ خیره داپښتانهٔ به ئے درنه اخلی - خوهمت
به غواړی - داتهک دغاړے دانیم ژوبلے پښتو چه وئ - لکه
دهغوئ به کاتلے واچوے غاړے ته - چوکه به ځان سره
دخون واخلے - کلوکښے سپی وی کنه - وختی سحر به
او ځے - ملک دپښتو دے - دچاے ډوډئ غم مه کوه - ټوک
به ئے درکړی - کیدے شی - چه ترکمئ مابنام پورے څه خرڅ
کړے - اوکهٔ خدائی دهٔ اونهٔ شوه - نو زړهٔ به تنګوے نه -
دا داوچے پولونه - لکه فردوس سره دے - یاهشنغرئ کښے -
ژے دے - قطب ته نمر نګی - سحر وختی به هغه دپیتاوی ګوټ
باندے به څادر اوغوړوے - او کتابونه به پرے بنهٔ په
طریقه کیږ دے - هرتیرودونکی ته به ډیر خوار ګورے -
کیدے شی - که ئے رحم راغے اوکتاب ئیم ئے واغشت - مرادیه
په نوردو طریقو به بیا فکر کوو -

بخت بلند : دحیا نه خو کیا جوړه شوه . ړوند خو ړوند وی .
خو دا دروغ ورله ولے په سترګو کوتے منړی . بس دے اوشوه . او
ډیره اوشوه . داوبش کلمه شوه . ربنتیا بنهٔ ده چه رم یاد شو.
تا خو هم اوړم کال کتاب چاپ کړے وو . تا څهٔ چل کړے وو.
دروغ دایمان زیان دے . ایمان دوره نهٔ کړے . څوک دپانسی
کوی نه . ربنتیا ربنتیا به وے .

خان جی ! دد ے کتاب دچاپ خبره ما نهٔ دوست سره
کوله او نهٔ دشمن سره . ځکه چه دوست به خفه شی اودشمن
به خوشحاله . نو ځله رم څوک خفه کول اوڅوک خوشحالول.
ما داخبره تر دا وخته نهٔ کودکړے ده او نه د دفتر مرکرو سره . پته
رم ساتلے ده . پرده لاړه نهٔ شی . اعتبار به کوته شی . خو
خان جی . ستاسو خاطر رابانده دروند دے . قیصه داسے وه.
ما بانړوته اغښتی وو . بانړوته خو اکثر دبنک دخلقو راځی.
خو درب کړهٔ وَو . ستیروتے به وَو . نما دلسو زرو روپو بانړ
را اوخته . چاته رم غږ نهٔ کوؤ . پیسے چه رم واغښتے ، نیغ
ورغلم . جنګی محلے ته خبره رم اوکړه . دغه لس زره رم پیشکی
ورکړے . دباقی پنځو زرو راسره سودا وه . بنه ته رانږدے شوه
تنخواه رم واغښته . ماښام له لاړم . په ماښام کښے رم فکر دے
ته لاړ . چه لوبه جوړه کړه . دفتر ته چه راغلم . دجیب وهلو
هٹی پیټ رم جوړ کړو . مرکرو رم طبع تسلّی اوکړه او هڅی پنځه سوه

روپئ راکړے . اکوکه قرض وے . شلور زره شوے . لاړم کتاب

چاپ شوے وُو . دخوشحالئ نه په جامو کښې نهٔ ځائیدم . لکه دیونوم په دواړ مخه بنګل کسے .

حقه دهٔ . خان جی . ځان راته دروند دروند بنکاره شو . پیسے

م ورکړے زر پاتے شوے . ماوے کهٔ خیر وی دا به بیا درکړم . کتابونه

م ستاسو په حجره کښے کیښودل . یار دوست چه خبر شو . چه اشنا

کتاب لیکلے دے نو مبارکئ له به راتلل . وے به ئے مونږ کښے

هم خدائے سړے پیدا کړو چه کتاب ئے اولیکه . سړی ځنې کئ

علاقه ئے اوځلوله . ما دبنار نه ککوړی خطا یا نے راوړلے .

چاپیو سره خوشیرینی ضروری وی اوچه تله به نو یو کتاب

به م ورله ډیر په درناوی ورکړو . خان جی ډیر شاباشے

به ئے راکړو . خو په شاباشی کورونه نهٔ ودانیږی . کنی نو

زهٔ به اوس بنګله کښے اوسیدم .

دکتاب د خرڅ دپاره م دا سوچ راغے چه دکتابونو دوکان

له ورشه . که ئے واخلی . یا ئے په کمیشن خرڅ کړی خبره

م ورسره اوکړه . وے ئے . که دکورس خلاصے یا کیس پیپر وی

یا بیا فلمی وی نو راوړه . اوکهٔ د پښتو وی نو بیا خفه کیږه

مه . مونږ سره ځائے نشته . څهٔ ورځے پس ستاسو کور کښے خفګان

راغے . کشر خان حجرے ته راواوړید . هغهٔ راته اووے . الماړئ

اوزګاره کړه . بوجئ م دکوره راوړه او ډیر وختی م په سائیکل

یوړه . او د دفتر ګودام کښے م کیښوده . هیډ کلرک چه خبر شو . وے

ئے افسر بد او نۀ گنڑی - سودا واغښتم چہ اوس بہ څۀ کیږی.
دیرے خوږ کورته هم نۀ شو راوړے - یو خو دا چہ کوټه کښې
دۀ سیب دۀ - دختو دۀ - بزے او وینه پکښې دیں - او لا پہ تیره
منبڼکان پہ کښې بیزه بازئ هم کوی - دا خو دِ اوخوری سر - که
کورودانے گڼ ژبه راوکاږی - اوچ او لونډۀ گنډ وږ کړی - نوبیا..
دغمه خوب نۀ راته - کلی کښې دوکاندار له ورغلم - هغه
زړه نسخه " دیرش روپئ من " راته یاده وه - که ردئ کښې
ئے واخلی - هغۀ غټ پړیسکړی اووے -

" دوره اوس پلاسټک راګډ شوے دے - بند هم
دے او ارزان هم - کاپئ کتابونه اوس څوک
ردئ کښې نۀ اخلی ".

دتهقه تندی شوم - چہ چا کول چہ ما کول -

دبنار پہ یو سکول کښې م یو استاد سره پیژند گلو وه -
ما وے راځه - دا کتابونه بہ د نهم لسم پہ هلکانو مفت
اووېشے - که لږ ته م اوشلیږی - هغه ماسته چہ خبر شو هغه
وے دا د کورس کتابونه دی که څه خلاصے یا گیس پیپرے دی -
ما وے نه دا د پښتو افسانے دی - وے ئے سپک پاسه - د هلکانو
کښې مازغۀ دی خیالات ورله خرابوے - کتابونه اومفت - اوبۀ
دکوم ځائے څخے کړی دی که پولیس ته دِ حواله کړم - تندی له م
راواچولے چہ کتابونه نۀ شو دافیمو لڼاکه شوه - سبالی له ئے
پہ کرو شوم -

بلنده او مرادخانه ! خبره خپل مینځ کښې کوو ـ خفګان به یو ارخته کوو ـ هسې نه چه ستاسو زړه خفه شي ـ خان جي په ارمت وایه ـ مونږ پوره د حیا ترې پاتې نهٔ دے ـ سل په لالي پورې دایو پرے د بنګړو ـ ته هم وایه ـ چه ارمان دِ پاتې نهٔ شي ـ بنه ده ـ نو دا راته اووایه ـ تاسو بانډے دے پښتو جرګے کړے وے ـ چه کتاب اولیکئ او مونږ به ئے په یو چغه اخلو ـ نهٔ دا سے خو څه خبره نهٔ ده ـ واقعي حیا ـ نو په خپله ـ نو ګیلے ګله کړے د بله ـ

خان جي عمر دِ خوړلے دے ـ په مرحبا دې معاشرے خپل خپل حقونه دی ـ لکه په تا ـ میلمه له به چاځے دوړی کټ پوزئ ورکوے ـ غم ښادی به ستا په سر وی ـ کلی کښې غائښ ماتے سرماتے به ته فیصله کوے ـ که دا نهٔ کوے ـ نو وایه امانت کښې خیانت شوکنه ـ مونږ په خپل یقین مات کوه نیکان کولے شو ـ کهٔ د معاشرے کږلیچونه په ګوته کوو نه ـ نو زمونږ ګورګردن به ینولے کیږی اوکنه ـ څه دِ خیال دے ـ دے له به فیرنګیان که جرمنیان راځي ـ

مرادخانه تاسو نه خو پوره نهٔ ده تیښے ګیلے کوئ ـ کهٔ پښتانهٔ درسره پرق اونهٔ کاندی ـ نهٔ دِ اوکاندی ـ خپله څهٔ شوے ئے ـ دا کور په کور چه ادبی ټولنے جوړے دی او ځانله ځانله هلے ځلے کوی که راغونډے شوے ـ د ضلعے او بیا د صوبے په کچ مو د نشر واشاعت یوه مضبوطه اداره جوړه کړه ـ ښو

کړے به مُو هوارے شي ـ خان جي ! خبره دِ په کُل بدله ـ په بده ئے مهٔ کنړه ـ دیو خیال په سیں خبره بنه ده ـ اوکهٔ عمل ته ئے اوکاږے ـ نو د پښتنو راغونړول ( هغه دِ ادبی خلق ولے نهٔ وی ) د چندو تول دے ـ چه یو ورکښے اچوے دوه ترے تووپ وهی ـ مرادیه ! اوس په دښتیاؤ راغلے ـ غلا درنه کیږی نه ـ وائے چه شپه دجمعے ده ـ بلندیه د دغه لاندے مان وژنے ـ یادلره د کاتب کلی غوا چا په ناسته نهٔ ده راړولے یا به یو کیږی یا به روکیږی ـ اوکهٔ او نهٔ شوه کنه ـ نو کښینه د تمبے شاته ـ کوئی لکه دکوسنړو کلے مانے ـ پښتانهٔ بنهٔ خلق دی بیا هم قدر کوی خو د مرګه پس ـ درحمٰن بابا په قبر مشاعره وه ـ خادم بابا پکښے هم وو ـ هغه وے خادمه غوږ رانږدے کړه ـ راته ئے وے ـ

۵

چه ژوندے وم تاسو ویشتے وم په کاڼو
اوس رم خله بنکلوئ د قبر کاڼی

بلندے ـ تاؤ راتاؤ شو خوشحه ئے وسُلے نهٔ شو ـ

خان جي ـ چه اخترتیں شي نو سکریزے په دیوال اوتپه ـ چه مرادے او بلندے خاورے واغوندی ـ د قبر کاڼی دِ هغۍ خوک بنکل نهٔ کړی ـ وائی ۵

چه په پښتنه رم راغلے
اوس رم د سخات کړے ته مهٔ نیسه لاسونه

خان جی خوله رم دِ ماته شی چه دا اووایم چه کنی تاسو په غلطه ئے - خو کومه ژبه چه د عیسیٰ علیه السلام نه په اخوا او د ادم علیه السلام په دیخوا د قومونو د ژبو په قطار نهٔ شوه - نو وایه داګناه دچا ده ؟ اینے کنه مونږ ئے اوس هم په پیکلو اولوستلو شرمیږو اوکه دغه حال وی نو کهٔ تر قیامته شی نو دا وړئ به شرړیٔ نهٔ شی -

هلکو تاسو خو ډیر کیله من ئے - زهٔ خو شکر دے - دد خپلو پښتنو نه نا امیده نهٔ یم اخر به دسحر ورک مابښام خدائے پاک کورته راولی - نو دوئ ته بیا څوک ورک نهٔ وائی -

خدائے مه کړه - خدائے مهٔ کړه د شیطان غوږونه دِ کاڼهٔ وی که ددغے سحر ورځ زمونږ د دنیا نحوس زړه کاله وی - او خدائے خیر چه مابښام به ئے وی اوکنه نو بیا . . . . .

چپ کړه دنیا په امید خوړے شی - تا بانده خو ډیره تیته ده - قیامت دِ بیا راوست - ربښتیا دی - اوږی تر په تبئ هم پرا تے بښکاری -

مرادخانه! دا کالے هم هغه ځائے کینږده چه د کسوم ځایه دِ راغښتے دے - هغه مسوده دِ ماله راکړه چه د زړهٔ برامِ دِ کښینی زما خو یره اوشوه چه دکتاب دچاپ دپاره په التوعسق سر نهٔ شی -

دبه ! ورک لیونی خو دِ پیدا کړی دی - لکه مرادے چه دکه -

دچاپ دپاره دښځے نه کالی پېټوی - بخت بلند چه کم بغله دے - د
جیب دوهلو ډرامے کوی - دېچو دخولے نه نوړئ راشوکوی - پاک
رب ! لیونی مئین پیدا کړه چه دخپلے ژبے په لیکلو او لوستلو
فخر کوی چه پښتو دقاموس دژبو په قطار شی - خدائے خبر
چه شعر دچا دے
خو وائی دا سے - ع

یوه ژبه بله توره مونږ ته پاتے ده میراث کښے
څوک چه په دے میراث فخر کوی په رښتیا پښتون هغه دے

---

# بنده حیران

# خدائے مهربان

خپله خو لیکلے نهٔ شم - خو افسانے زم خوښے دی چه کومه
رساله یا کتاب په کوتو راشی - نو ډیر په خوند رنګ ئے کورم.
او لا کومه چه زم خوښه شی . نو هغه خو بیا په ورځ کښے دوه درے
ځله کورم د پښتو د رسالے انتظار زم د لیونتوب تر حده وی . په دے
کښے د یو جینئ افسانه وی . خپل نوم خو ناز لیکی . خدائے
خبر چه پوره نوم به ئے څهٔ وی . د هغے فکر او تخیل ته حیرانیږم
ورے ورے او جوختے جوختے جملے وی . ژبه ئے سوچه وی .
کرسنده وی . د خپل مطلب په وضاحت کښے ورته څه گرانه
نهٔ وی . نهٔ خوئے د فقرو په جوړښت کښے څه لاندے باندے
وی چه د سړی طبیعت پرے خرچن شی . د افسانے اغاز او انجام
ئے خوندور وی . سړے ورته حیران کوته په خوله وی . د
درد او د جذباتو په کښے انتها وی . داسے معلومیږی چه
ځیګر ئے سورے ورے دے . د زړهٔ په وینو لیکل کوی . کومه
نقشه چه هغه راکاږی . زړهٔ ارے ارے کوی . د ځیګره ښنے لوخړے

او بیلے لمبے خیژی ۔

په فکر او په خیال قدغن څوک ایښودے نهٔ شی ۔ نو دا م کرل ږیبل چه خدائے پاک څرنګ فکر او تخیل ورکړے دے دغسے به ئے ورله حسن او صورت هم ورکړے وی ۔ د زړهٔ او مزغو په پردو م ډیر شکلونه تیریدل ۔ خوکوته چرته نه اغتته ۔ په نالیدلی مخ مئین توب ته کړ اوس عالم لیونتوب واتٔ نو کرم نهٔ دی ۔ اوس هغه زمانه نهٔ ده ۔ هغه خوبه کال پس یوځل په بام ختته ۔ اوس خو څهٔ داسے خبره نشته ۔ کله به م زړهٔ کلک کړو ۔ چه درسالے چلونکی نه تخښنه پته ازده کړه ۔ خو نه زړهٔ له به م راغلل ۔ که دا دَچا د ژوندُ منګړے وی یا دچا امانت وی ۔ بل د پردو تورسرو تخښنو پتی سره ستاسومه دهوا ما دغانی لپسے منړے مهٔ وهه ۔ زړهٔ ته م کلکه غټه تینړه کیښوه ۔ خو سره ددے پوهیږم نه ۔ بیا به هم زړهٔ د صبر زولنے شولے ۔ چه کله به ددے افسانه رساله کینے راغله ۔

زهٔ په سکول کښے استاذ یم ۔ پلار م نهٔ شی یاد چه کله مړ ؤ ۔ مور م دکنتون شپے ورځے تیرولے ۔ اوس زهٔ زلمے یم او هغه عمر په شا ۔ مخ ټوخ ۔ درد بریخونه داسے عمر سره تړلی وی ۔ دګرمو چهټیانے وے ۔ ماوے مورے راځه ۔ چه سوات له دے بوځم ۔ هوا به د بدله شی ۔ هغلته حکیمان شته ۔ علاجونه شرطیه کوی ۔ مور م دحکیمانو په علاج پسے وړلنی

وه - هغې به مونږ ته د بوشندو - د بټلي چاړو او د سخاوت د عرقو ئے ډیر صفتونه کول چه عرق خو د خیټې درد او اړ د پاره تریاق دی - د ډاکټر د علاج به ډیره یریده - بنه وه سوات ته په تلو ډیره زر رضا شوه - مور او زوئے دکل په ورځ سوات ته لاړو او یو هوټل کښې موکمره اونیوه - مور به رم وے هر کال دکل په ورځ کوه - دکل ورځ ډیره بختوره وی -

مونږ سره په ګاوښ کښې لکه جوخته کمره کښې مور او لور اوسیدے - کله چه به زه بهر لاړم - دوئ به زمونږ کمرے ته راتلے او مور به رم کله کله د دوئ کمرے ته تلله - مور راته وے چه دا مور او لور دی لکه زمونږ د خدائے په ویړدنیا ئے هیڅوک نشته - دالور ئے بنه مره - پښته او کنډ لے بدرنګه ده خو بچیه ډیره بنهٔ ده - عزتناکه ده - قدرمنه ده - زما قدر خو لکه د مور کوی - دا په سکول کښې استاذه ده - مور ئے ناجوړه ده خو د غم غلطولو د پاره لکه زمونږ دلته راغلے دی پاک رب دِ دهر چا پردے اوساتی -

یوه ورځ رم مور د سیل په غرض فضاګټ له بوتله - هلته په بنج دا مور او لور هم ناستے وے - مور رم هغوئ سره کیناسته او زهٔ جدا په بنچ - ما دوئ له چائے راوړے - چائے ئے اوڅښلے او د خبرو اترو نه پس د هوټل د تلو تابیا ئے کړله - چه پا سیدے پوهه نهٔ شوم چه چل څهٔ اوشو - مور ئے راپریوته - کیدے شی -

چہ سرپرے کوځیدلے وو - ما ته مور چغہ کړه - رادوکړه حکیم خانه
هلته - ما منډه کړه - زړ‌ه م لاس د اوچتولو دپاره بنکته کړو-
خو دے جینئ زما نه مخکښې مور له غیبږ ورکړے وه - او اوچته
ئے کړه - دوئ ورله زړۀ او تندے اومږۀ - ما په دو رکشه
راوسته - بنه وه لویه وه - دوئ روستو او زۀ ډرئیور سره
کښیناستم - هسپتال ته لاړو - ډاکټر وے څۀ دیرے خبرۀ نشته.
خیر به شی - نسخه ئے اولیکله - دوئ م رخصت کړل ما دارو کان
واغستل - ستر پرده لاړه - لکه مونږ اوس دیو کور بندیان شو
پوهه نۀیم چه ولے - نۀ زما د مور زما په تلو راتلو
اعتراض وو او نۀ دهغوئ - کیدے شی چه دے جینئ کښے د
خوښے هڅو څه درک نۀ وو - لکه دغ تندے - ورے چوچے
سترګے - اوچ او بے نمکه اوږد مخ - اوږده پوزه - شونډے
خو ئے نرئ وے خو بدے دا ړے پرے دپاسه پرتے وے - نوره
خو نرئ لوړه دنګه - اوږه وجود ، غیږے غیږے تورے تورے
زلفے - د شانه دچین بناپیرئ وه - او بله دا - دخدمت منږے
تر ړے دپاره ایسکے یو سرے وم - یو څل دهغوئ کمره کښے ناست
وم - په میز د پښتو رسالے پرتے وے - راواړم غشتے - دنآز
لیکلے افسانے په کښے هم وے - ما ترے د نوم تپوس اوکړو - چه
ستا نوم - هغے وے - نوم خو م شگفته نآز دے خو افسانے تش
د نآز په نوم لیکم - څرنګ چه عالم رواج دے - ما ئے دا افسانو
بنه تعریف اوکړو - او ایمانی خبره داده چه وے هم د تعریف.

خوشحاله شوه - بیا رِم د کلی او نور تپوسونه اوکړل - وے ئے چه پلار رِم په اکسیډنټ کښے مړ دے - سړکے راړکے شوے - وے ئے دا رِم مور ده - دے راسره ډیر کنتون کړے دے - اوس زهٔ پهٔ سکول کښے استازه یَم - د ژوند شپے ورځے یو ځائے مرک ته لنډه وو - ددے افسانے رِم را په زړهٔ شوے او هغه خپله بے اختیاره تلو سے - د افسانو ناز اوس د شګفته ناز په شکل کښے مخامخ -

شګفته رِم مور سره بازار ته تلے وه - سود سودا به ئے کوله - مور ئے په کمره کښے یواځے وه - ورغلم - ډیرے دعاګانے ئے راته اوکړے - وے ئے کهٔ تهٔ نهٔ وے - په دے رنځور بدن به مونږ بنځو په بنځو به څهٔ کول - خدائے پاک مونږ دپاره مور او زوئے د رحمت فرښتے کړئی - ما وے مورے دا د احسان خبره نهٔ ده - دا زمونږ فرض دی - د لوئے خدائے شکر به اداکوم چه مونږ د چا په بنه راغلو - خبرو خبرو کښے رِم ترے تپوس اوکړو - مورے شګفته دِ چاله ورکړے ده - زړهٔ ئے راډک شو - لکه سلګئی ئے اووهلے - وے بچیه - دا رِم په زړهٔ ډیر لوئے غم دے - کهٔ خدائے پاک زما په ژوند دخپله کوره کړه - چه د دنیا نه روغ زړهٔ لاړه شم - خو معلومیږی دا سے چه دا ارمان به رِم اونهٔ رڅی - ځکه چه یو ځل څوک راشی - او دا بدنصیبه اووینی - نو هغه بیا راځی نه - هسے بچے ډیره قابله ده - خو دے بد رنګ والی دښے تو ښے

اوبښکیده - الله سوب سان دے - څهٔ سوب به ئے کړے وی - بنځه ذات دهٔ - بے اثرے او بے ټوکه دهٔ - زما د مرګه پس به دې څهٔ حال وی - سترګو کښې یو ځل بیا دنړے دنړے اوځلیدلے -

دمور م خدائے خبر - چه څهٔ نفسیاتی اثر وو اوکه دحکیم عیب ددارو - لاړے مو ورته تیرے شوے - د جوړونې دردونه بنهٔ شول او تبو خے هم - وے به ئے - دا اوبه بنې دی - زیم نشته دا وچو ګتهو دچینو اوبه دی - ځان سره به ئے اوړم - ما ورته وے لخیره ډیرے به یوسو -

کلی ته چه راغلو - مور م بنهٔ شوے وه - پړونے ئے په سر کړو او تره کره م لاړه - هغوئ ورته بنه اوکړل - وے د کور خبره دهٔ - مور م دخوشحالئ نه تله راتله - او په ما به ئے زیری کول - ما ورته اووے چه مورے مانه خو به دِ تپوس کړے وَو - ولے بچیه ستا دشمنه خو نهٔ یم - دکلو لخته دهٔ - د بنایست کوکے ئے کور په کور خورے دی - سره ددے د پولے پتی میرمن هم دهٔ - چونک چونک خاورے خولے ته اچوه - چه مونږ ته ئے غاړه کیسنبی دهٔ - کنی نو هغوئ له سل او زر -

ورځے تر مینځه ډیرے شوے وے - خوبونه م لیدل چه سوات دے - هم هغه هوټل او هغه بندیان - سات په کړئ به اینګئ هم راتله - مور راته وے - بچیه - جوړ ټوک دِ یادوی - ما وے د مرګو به یاد شوے یم - زړهٔ کښې م داده چه تپوس ئے

اوکړم - د شګفتې دې کلې ته لاړم - چه ورم او د بووٌ - چوندی کینې به ئې لیدلے وٌم - مورته ئې وے حکیم خان دے - وے ئې راځه د اسمان کتهه - دشپې پیدا دورځې ورکه - شګفتې چائے پخې کړې او په مینځ ئې کیښولے - وے ئې افسانه مې لیکله - خو کاغذ په سلئ دے هاها او زونه کول - ما ورته اووے -

ه

څهٔ وائے کاغذ زهٔ نه پوهیږم په خبرو ستا
خوله به دِ کړم ډکه که یار راغے په شکرو ستا

زهٔ مسکے شوم - ما وے خوله خو به دِ ورله په شکرو ډکه کړې وے - خو زر ئې اووے - خدائے خبر چه داشعر دچا دے؟ خو تاسه دِ ځان ورک نهٔ شی - دلیکونکو خلقو داسے خبرے ذهنی عیاشی وی - هغوئ د پیش نه پښتم خان جوړوی - د هغوئ نهٔ یار وی - نهٔ اشنا - بس ده وی به - ما پرے څهٔ میخونه ټک وهل نه - خو ایمانی خبره داده چه د دغے کیفیت حالت نهٔ شم بیانولے - بد رنګه شګفته بیا د افسانو نازشوه او زهٔ هغه ورک لیونے - ریشتیا دی یاری د مراوٌ سترګو ولاړې ی - مور ئې زیاته شوے بنکاریده - وے ئې داځل خدائے خبر - وے ټرل - چه زهٔ به دکتهه پاسم اوکه نه - سرے چه زوړ شی د رنځونو پرے زور شی - په تصوّر کینې د مور د مرګ او دهغے نه پس بیا خپلے بے اسرے ورځے ئې اولیدے - نو د دے سترګے هم راډکے شوے - مور ورته اووے - چه څه څهٔ تودۀ سارۀ که

داخوبانړه ده - هوټل نشته - شګفته په کمتوی خمخټې شوه. که
ما زړها وے چه زۀ به لاړ شم خو هغې وے. راتلل په اراده -
او تلل په اجازه - دے بیا خبره راواغشته -

" وے بچیه - سینه په ډکه څکه ئے وایم چه ډیر
مجبوری ده - کنی نو ما سره دا نۀ بنائی - شګفته
سرتوره ده - دے له سورے پکار دے - زما په نظر
کینے بچیه هم ته ئے - چه کورے سوال م بنکته
اونۀ غورزوے"؟

پوهه نۀ شوم چه دا دومره کلک جواب م په کوم داډ ورکړو
زاری دزوره کمه نۀ وی - چه مور لری اوکه - په منت به ئے
واده که - ما ورته اووے - او بیا م مالګه او اوبۀ یو ځائے کړے
پنځه شپې مشران م راغونډ کړل او ډیره په ساده نکاح اوشوه.
مونږ دبنار کورته لاړو ماخپله بدلی هم بنار ته اوکړه او جمعه
په جمعه به کلی ته راتلم - خبره م ډیره پټه ساتلے وه چه
یو غوږ او بل غوږ خبر نۀ شی - دخدائے کړۀ وو هم هغسے
اوشوه -

مور م بنے ډیرے جوړے ژړنده ے - کالی پټری، لوخی لرګی
عرض دوادۀ واړه تهک تهوک ئے پوره کړے وو - ینمه ئے ایلنے
وه - وریژے غوړی او میسبنه ئے هم واغشته - کلی له ئے ډوډۍ
ورکړه او بنۀ په درز درون وادۀ اوشو - مور م بے انتها خوشحاله
وه - دناوے دکتو دپاره چه به څوک راتلل - نو په یو ساه

به ئې صفتونه کول چه ناوړه وي خو چه هم داسې وي . هرسړي

کښېني کورته ښځه راولي .

کلونه تېرشول . شګفتې له خدائې پاک څلور غونډېرې په

یوه سیزنئې ورکړل . چه بیا دکور پامسته داره وه . مور م څپله

اینګور په باباګانو اوکرځوله . نیمورې بابا له ئې پرله پسې

اووه زیارته لاړه خو چه خدائې نه کړه نو باباګان به څه

کړه . بیا د ډاکټرانو له هم لاړې . تسمونه او شول خو دټولو

یو رپورټ وو . چه بچې ئې په نصیب کښې نشته . یوه ورځ

د تربورانو ښځوسره ئې په څه شور وو . زړې اوځوانانې

څه خو په کوټو راختلې وې اوچا غرئې په دیوال اوچتې کړې

وې . او ورته ئې په یوه چغه وې .

"خدائې پاک دِ ارخ دبچو په متیازو لوند نهٔ

کړی . ستاسو سترګې پټېدل او زمونږ اختر سم دی."

دا پیغور نه پس مور او ښځه راته ارم شو چه مل واده اوکړه

ما ځان کونړ کړے وو . وې ئې چه ستا غوږ دې که هسې زمونږ

زوږ دے . ډېر اخوا دیخوا رم اوکړل . چه په ځان کور مهٔ

ورانه وئ . چه مېرمنې په کښې دوه شي هغه خونه ابتــه

شي . زما نه کوم تخت پاتې کېږي . چه سړے مړ شي . یا

زوئې ته میراث یا تربورانو ته میراث . په دے خبره هسې

اوښتېږدے . ما خو پرې خبره کلکوله چه خدائې پاک شګفتې

ته لار ازاده کړي . مور م وې .

"بچے شه ده واوره - چه پکښې نه وی هلک. هغه کوں
د تیغ لائق - خوښه دِ اوس خپله په کفن کښے به دِ
مخ اونه کوړم - مونږ خو د ساه په تار جو تے خورو.
اخر مور دِ یم - ستر کے پټوه - شملے تیروه"
څه مورے ډیره دادیږی - واک ئے دملیږی - ستاړے زما
غاړه - دخدائے په ویره دنیا کښے خوږم هم ته ئے - که
هندو دیار دپاره غټه غوښه خوری نو مور زه به خلوں
اوکړم - چه ته پړے خوشحالیږ ے - دجمعے په شپه استخاره
اوکاږه - او ستا خبره دګل په ورځ به دلوئے بابا ختم اوکړے
چه پاک رب ورله سمون ورکړی -
"بچیه اِهم دغه م وے - هرکار کښے اول دخدائے
پاک جل جلاله نوم اغښتل ښه دی - زه به د
ځان سره غوړی دریشے راوړم -"
او - هغه - مورے که کوا سیانو کښے څوک راتلل - نو
خیر دے -
"وے ئے او بچیه - داخو د ثواب کار دے"
دګل په ورځ شګفته سره د بچو راغله - دے بهر ایسار شو
چه کله کورته راغے - ورو چغے کړے چه امی - داجی راغے.
څوک ئے د پښو نه تاؤ شو او څوک ورته غاړه وتل - مور
اوښځه ئے پوئے شو چه داواړه خو هم ددهٔ دی - ښځے یو

بل ته ورته غاړه و ته . شگفته ته د مور په پښو پریوته . واړه ته یو یو په سر سترگو ښکل کړل د لوئ ذات شکریه ئې ادا کړه یو ورو کې په غیږ کښې او بل ئې د کوټې اوښیوو . او په چغه ئې اووې .

"چه زموږ د مرگه پس به اوس د چا اختر نړ.
شی ."

رحمن بابا وائی سه

سه

د خلیل د کعبې نه دا کعبه ده لویه
که اباد که څوک ویران حرم د زړهٔ
(رحمن بابا)

# مهٔ کوه په ما

# چرے اونهٔ شي پهٔ تا

سخے د موږدي پهٔ زور ټوپونه وهي ۔ موږ خو ستا ډیرے ټوپ وهلے نهٔ شو ۔کهٔ چرته موقعه اوکړه نو موږ ے به راپسے نیغ راوتے وي ۔ ځان شرمولے نهٔ شو ۔ کنی نو خان ستا نمک خوار یو چه چرته ستا د بدو خبره واورو ۔ نو ډنه کښے ورته خولے شو ۔ نن دغه دے شیرخان زموږ کشر خان ته اووے

" ویشکیه تهٔ هم د خبرو شوے "

داسے د دوسپے ژوند خو مانهٔ دے تیر کړے ۔ نن خوئے دومره ستغے سپورے اوکړے ۔ چه لمبه لمبه ئے کړم ۔ زړهٔ لـه م راغلل چه راشه مټ پړے اوکوړه ۔ خو ستا جواب نهٔ راځي. کلی کښے به خلق څهٔ وائي ۔ دا دومره بنهٔ سړیتوب خوکونیتوب دے ۔ خان واوره ۔ کهٔ ئے اوخوړه د نړلته ۔ داسے به کښیني نکه عورته ۔ چه خوک ډکے خوزوی ۔ او تا ورته تل اونهٔ خوزوو۔ نو بیا ........ موږ له هم لوپټے اوبنګړی راوړه ۔ چه

کوډکینو - دا ژوند ګران شو -

هلکه فضلیه ! نن خو ډیر بے واکه ښکیا ئے - شیرخان خو زما ډور عزیز دے - که د وه خبرے اوکړی - ځان کونړ کړه - مونږ هغه سره ګوتے نهٔ شو ما تولے - اخر به پوهه شی - تهٔ ساړه خوره - د الله واروته کوره - مړده خوله خوږه خوږوه - شانه ډز مضبوط اوکاږه -

په هتو او دکبابو په کړو خلق ښکیا وو - چا به وے. شیرخان بد کوی چه بے موجبه نوروزخان سره ارمیږی . اوریس ئے راغشتے دے - کله ورله ناظر کنځی او کله ئے زوئ ته ستغے سپورے - نوروزخان بنهٔ سړے دے - ګنی نو په زور ترے کم نهٔ دے او نهٔ په جائیداد - چا به وے چه شیرخان نر دے - دخولے لاسو ئے زار شم - چه دا سے غیرغماز خو ترے سر اوچتولے نهٔ شی . دے فرعون له خدائے پاک موسیٰ پیدا کړے دے - ګنی خو دهٔ به څهٔ کول - هسے په مونږ غریبو به ئے سرے نیږے راخکته کړے وے - بنه دهٔ دبنغ ګوځیدو نه ئے پریښتے دے -

شیرخان له چا د بنوں نه زانړے راوستے وے - بنے عادتے شوے وے - په پټو کښے به ګرځیدے - او بیا به کورته راتلے - دبد قسمتیٔ نه دجوختے بانړے یو هلک اولید ے - په دو دو ئے ټوپک دکوره راوړهٔ - ډز ئے اوکړو.

دواړه اوټکیدے - په خوشحالئ ئے راواغښتے - پته اوټکیده چه داخو د شیرخان کورنئ ذانړے دی - خبره ډیره درنه شوه. خو بنه وه دحیا او دعزت خلق پکښے ترمینځ شو - جرګه اوشوه. نوروزخان هم پکښے وو - شیرخان بغیر څه تاوانه طوفانه جرګه اومنله - ملک معاف شو - جوړه اوشوه -

نوروزخان - داورځ دخدائے نه غوختته . ویخ سړے وو - په سوکښے ناست وو - موقعه په کوتو ورغله. وخت راغے چه دشانه ډن اوکاږی - ماربه هم مړشی او لوړبه هم مات نهٔ شی - ورځے شپے تیریدے - یوه شپه په اوبهٔ خوړ کښے داهلک اوویشتے شو - فضلی په ډیر رموز په هتو او بهتونو کونکوسے خوړکړو چه شیرخان د ذانړو بدل واغښت دعوئ په شیرخان اوشوه -

شیرخان حوالات کښے شو - دلته نوروزخان په منډو ترړو تنړئ شلولے - څوک ئے په منت رضاکول اوڅوک په دولت افسرانوله ئے دلرے برے سفارشونه پیداکول چه شیرخان بچ شی - شیرخان چه دنوروزخان دومره غټه همدردی اولیدله نو په خپلو کړو ستومانه شو- چه هغه به کله ورلـه زوئے کنځهٔ - اوکله به ئے ورله ناظر وهه - کله به ئے ورله بوټے وهلے اوکله به ئے ورله اونے - هسے به ئے اوبهٔ خړولے که سے لاس واچئ - شیرخان خو بچ شو خو دشته دولت نه خلاص شو- لس اته جریبه مزکه هم لاړه -

شیرخان ته زړهٔ کښې راغلل چه غیرغماز به واڼی چه خراړے

دیو دزه سره لاړے - اوس به حجره کښې ناست لهړی به شمیری.

خبره ئے دا جوړه کړه چه موږ اخلم چه کلی ته په کښې خُم راځم.

دډیرو په خیتهو به ئے دلیږی . پهٔ دے خیال د نوروزخان

حجرے ته لاړ - چه صلاح ورسره اوکړم - ښه مشوره به

راکړی - په نوروزخان ئے په دے عقیده راغلے وه چه پهٔ

مقدمه کښې ورسره ښهٔ په اخلاص منډے تړ ړے وهلے وے.

شیرخان چه د حجرے په نوایه ښکاره شو د لرے نه

نوروزخان اوچت راپاسید - وے ئے - خیرشه شیرخان.

ښه ده چه په ژوند دِ لار غلطه کړه - بالښتونه ئے ورته

سرپښوته کیښودل - فضلی ته ئے وے -

" دانګه - چه چایو سره چړګ سور کړے.

اینے کنه شیرخان راغلے دے ."

فضلی چه شیرخان اولید - په زړهٔ ئے اوخوړه - دزرګر

غولوے په شلم کال پوهیږی او دنوروزغولوے هله پهٔ خان

پوهیږی چه دحشر په میدان الله پاک ورله عمل نامه په کس

لاس ورکړی - خدائے دِ مل شه شیرخانه - دنل لاندے دِ

پرک اووهٔ ساده سړیه - دانے سره لوموته هم خیال کوه -

دواړو خانانو چائے څښکلے اوخبرے ئے هم کولے - شیرخان

اووے - خان لالا په حجره جماعت خبرے دی چه شیرخان خوار

شو - یوے مقدمے دومره اوځنډوهٔ - اوس به لکه دغل پیش

په بنګو کښې به ناست وي . هغه رعب داب ختم شو . اوس خدائے خبر
څوک به پرے سلام هم واچئي اوکنه . لاله . زړۀ له م راغله چه
راشه موټر واخله . پرېږ ده چه پرے دوړے الوزي . صلاح له
راغلے يم . شيرخانه جذباتي کيږه مه . دد ے مخلوق به څۀ
وے . کۀ غريب شے . هم درپسے ړدے وهي . اوکه دوه پيسے
درسره اوشي . هم دِ نۀ زغمي . زما صلاح داده چه د
خون مقدمه دربانده تيره شوے ده . تۀ هغه کار کوه چه
عزت دِ هم جوړ شي او دامدن ذريعه دِ هم وي . موټر
دلږ وخت شے دے . هغه خوڅه کمي نه . دتيلو خرڅ جدا
دمستري پرے لاسوا . که خامخا اخلے نو ټريکټر واخله چيله
مزکه به کړے . ټريکټر به جدا وي . پنډيرے به دِ ډک
وي . تا به هم ساتي او ځان به هم . ټبره به دِ جوړه
وي . دوه کسه به روزانه حجرے ته راځي . چه خان ټريکټر
پکار دے . يوے له . ټريکټر له . شګه راوړو . باجوړ شنګل
راوړو . ځختي مو پکار دي . مرده يو وخت به هم اورکار نۀ
وي .

خان لاله ! والله چه خبره دِ بنه اوکړه . زما خو دے ته
هدو خيال نۀ وو . هسے صلاح له خو نۀ وم راغلے . ټريکټر
خو په ډير حساب کيږي . د پيسو دومره درک نشته . شيرخانه
تادي بنه نۀ ده . سوچ اوفکر پکښے ډير اوکړه . زرمۀ ګډيږه
چه سپک نۀ شے . که خبره دِ خوښه شوه نو بنک سره به مزکه

اوبیکے - د مزکے ضمانت په دے غواړی - که چرے خدائی ده - رقم واپس نهٔ شو - نو هغوئی به بیا وصولی د مزکے نه کوی - خبره صفا ښه ده که قسطونه په وخت وخت ادا شو نو څه موده کښے به قرضه خلاصه شی او مزکه به واګذار شی او ټریکټر به د خپل شی -

فضلی - خان ته په حجره کښے سر کیښود - حُکه دواړه یوازے وو - وے ئے خان ستا په دے قیصو قطارو رسم نه چه شیرخان ته چل خیښے نو خپله څه شوے - ولے ئے نهٔ اخلے چه دومره د خیر شے دے - فضلیه د هرے خبرے تپوس مهٔ کوه - چه صبر یږے نه - نو ښه ده غوږ شه -

" شیرخان چه موټر اخلی - هغه به څه د کارخانے راوتے نهٔ وی - څه کم او زیات د شپیتو زرو ډوی څه موده به ورسره وی - نو که په ډیر کم ئے خرڅ وی - نو هسے و په شل زره د خرڅ کړی - څلویښت زره څه تاوان نهٔ دے - چرګ له خو دسیخ داغ بس دے خو اوبنی په غلبیل نهٔ درنیږی - دومره بار به پرے اچوے چه په ګوډو شی - برپیږی به - د پاسیدو نه به پاتے شی - د ټریکټر رایه رم په دے ورکړه او ښهٔ په پویه رم ورکړه - نوے ټریکټر او ورسره نور ضروری سامان د لکه په نخه لکه اوشی - مزکه به بنک سره ګانړه کړی - قسط یو هم نهٔ شی

ورکولے - او نۀ ځانان قسطونه ورکوی - ځپله ئے خو
چلولے نۀ شی - ډرائیور به نیسی - درے پائے به د
هغه وی او یوه به ددۀ - او بله خیر لیٔے - میاشت
پس به ورله مستری ستومانی اوکانړی - پیسے به دکوره
لګوی - اصلی پرزے به تولے اوځی - دیسی به
پکښے اولګی - نو بیا پوئے شوے - داشلید سے
ترنګنړ به په کباړی خرڅوی - کار چه په مزدور
شی - عجب نۀ دے چه په نور شی - بنک به ډکری
اخلی - قرقے به که وی - خبره به نیلام ته اوځی.
مزکے اغشتو له سل او زر ډیر - چه پو ما توت شی
نو راځی به زمونږ پښتو له - نۀ به بیا کشر ځان
سره ګوله وهی - او نۀ تا سره - پولے او اونے
به هم نۀ وهی ."

نضلے سهوه شو - اویو اوبډ د ژور سوچ کښے لاړ - چه د لسویو
خلقو ساۀ یره اوبډده وی - دامونه ئے لرے غزولے وی. کوره
غوبړی یو ځائے او ویړی بل ځائے .

په کلی کښے د شیرخان لوئے درنه خورشو . نوے ټریکټر راغے
مبارکئ سلامتئ اوشوے - کور په کور مذکور وو - چه پښتون
خواریږی نه - د خون مقدمے چه څوک زمبلی وی هغه په مودو
مودو ځائے له نۀ راځی - ټریکټر خو په اول کښے مزدوری کوله. خو
د مازیګر پیسے به صباله په بنک بوزه وے - د میاشت په آخر

کښې به ورله مستری د ډرائیور په موسته په ارت مټ ورله ذرهٔ
ټکورو . وخت تیریدهٔ . قسط یو ادا نهٔ شو . دیخوا تړیکټ
دیکه سټارټ شو . ډرائیور چه پوئے شو چه ختم دے . نو
پښې ئے سپکے کړے . په خان چکه کښیناسته یو بل ته ئے
د خرڅ دپاره ډیر اووے خو چه چا به اوکت . نو په شا به
شو . وے به ئے . خان څه پکښې نشته . صرف د ا ظاهری
او سپنه ده . دا دے دِق سل مریض نه به ځان په کباړی خلاصوی.
هم هغسے اوشوه . کباړی ته ئے ورپغاړه کړو . دلته بنک نوټسونه
شروع کړل . د ډیرے نه ئے بریت لوئے شوے وو . دپخو
ټکو نه اووه لکه جوړے شوے وے . دیو یو نوټس په راتلو
به په سیارلے تلے راتلے . چه د اصل قرضے سره به ئے نور
بابتونه اولیدل . د بیلف جیبونه به په دے کرمیدل چه
" مدیون کلی کښے نشته " دا دپورټ به هغه په چایو او
شربت کوو . خو اخر ترکوے .

په کلی کښے د شیرخان د مزکے د نیلام نغارے اوغږیږے .
مزکه خو نیلام شوه او په پاتے قرضه کښے شیرخان
په حوالات کښے شو . سبنه وه . په ذاتی مچلکه ئے پریښو . د
ضمانت خوک نهٔ وو . د قرضے ضمانت گران دے . دے کښے خبره
د حساب وی ځکه هر سړے د ضمانت نه ډډه کوی .

نوروز خان او فضلے حجره کښے ناست وو . شیرخان ئے د
اپریشن په تخته اچولے وو . د مزکے د نیلام او د حوالات خبرے

ئے کولے ۔ خان مسکے شو ۔ فضلی ته ئے سترګه اووهله ۔ چه
هاتیانو سره تهانیے ژوی ۔ دے لا په سوله پندره نهٔ دے۔ فضلی
وے ۔ هلک دے ۔ هوښیار به شي ۔ چه کیږیږ په سر چیترے
اوخوری ۔ خبره دِ په ځائے ۔ چه په کور اور اولګی نو دیوالونه
پاخهٔ شی ۔ ګرځئ ځان به پټکوره وی ۔ دا پاتے مزکه دے
ساتلے نهٔ شی ۔ خوری به غوری ورپشے ۔ مزدوری هم نهٔ
شی کولے ۔ شاته ئے د خانئ پچ ترلے دے ۔ فضلی په برق
برق اوخاندل چه نیسی دِ اوس ځوابی روژے ۔ خو خان سپے د
ځان په ځنځلو نهٔ مړیږی ۔ ځئ به کراچئ ته ۔ کوی به دیو
سیټهه د بنګلے څوکیداری ۔ تا ورله دا سے ستن نهٔ ده وهلے چه
پرهر به ئے جوړ شی ۔ ففیله زره مهٔ وه ۔ دا ژوبل مار دے
مینږی ورله لبن دی ۔

دیو جینئ او هلک په عدالت کښے مقدمه وه ۔ چا وے
چه دے هلک په زور تختولے ده ۔ او چا وے چه نه په رضا ورسرهٔ
تللے ده ۔ څهٔ چه وی ۔ وی به ۔ دا کار د عدالت دے ۔ جینئ
نهٔ پلار او رونړو سره تله او نهٔ هلک سره چه ګنی مړه به
ئِم کړی ۔ په دے وجه عدالت په سپرد کوله ۔ سترګے ئے
اړولے را اړولے ۔ خوږے په نورون خان شوے ۔ دروند حیادار
او اعتباری سړے ورته بنګاریده ۔ جینئ ورته سپرد شوه خو
څوک څهٔ خبر دی چه پیشو د غوښو څوکیداره شوه ۔ دؤ جینه
او نر غنه ، سنړے سترګے ، غوبن غړے او نور ظاهری تنګ تکون

ئے تیول مزہ ناک وو ۔ څہ ورځے خو پہ خیں تیرے شوے ۔ بیوہ
ورځ ئے پہ حرکت خپلہ غځہ پوئے شوہ ۔ ډیرہ جابرہ وہ ۔ دخپل
خاندان ئے وہ ۔ ترلہ ئے وہ لکہ تربورہ ئے وہ سترگے ئے دخاوند
نہ ځکلہ نہ سوزیدے ۔ هغہ کفر ئے اوغرہ وُو چہ سرے
څہ کئے سپی بہ نوری نہ وے اغشتے ۔ بیا خو ئے ترے سترگے
نہ اوبنکے ۔ کلکہ بہ ورتیے گرځیدہ چہ هیڅ موقعہ پہ گوتو
نہ ورتلہ نو ددے بے اورہ ورتیدو زغم ئے نور نہ شو زغملے۔
نو هغے چاسرہ ئے خبرہ اوکړہ چہ څوک بنځے اخلی اوخرڅہ وی
ئے ۔ پہ بنہ قیمت جوړہ جاړہ اوشوہ ۔ پیسے ئے واغشتے۔ لاړے
گودرے ئے ورتہ سمے کړے ۔ وے ئے زۀ بہ بنار تہ لاړ شم۔
بهرکبے کبنے بہ اودہ ئے نور کار موخپل دے ۔

دنوروز خان کاسہ ډکہ شوے وہ ۔ دالله گرفت کبنے راغلے
وو ۔ دۀ دے جینئ تہ اووے ۔

"چہ زۀ خو بنار تہ بنادئ لہ ځم ۔ تۀ بہ بهر اودہ
شے او بی بی پہ کمرہ کبنے ۔ یریږہ مہ ۔ پہ حجرہ کبنے
کسان گنړ دی دلتہ دمابنام نہ پس بغیر اجازتہ
مرغئ هم پر نہ شی وهلے ۔ زرہ بنکتہ پورتہ
نۀ کړے ۔"

هغے ورتہ اووے چہ خان څرنگ ستاسو خوښہ وی ۔ زما څہ اختیار
دے ۔ جینئ پہ زړۀ اوخوړہ چہ جوړ دامے دژوند اخری شپہ
دہ ۔ پہ چغو چغو ئے اوژړل ۔ بی بی ورلہ رادوکړے ۔ ولے

لورے ولے ۔ دے ورته دخان خبره اوکړه ۔ شکی خو داول نه وه ۔ په غوجل لوئے شوے دسخی غابښونه عالم نهٔ کوری ۔ دا جینئ ئے په سرسترګو ښکل کړه چه زړهٔ ښکته چورته نهٔ کړے. زما دارے اوبـ دے دی زهٔ به ددهٔ اډوکی اوشمیم ۔ تهٔ دننه کمره کښے په ارام ښمله ۔ ور ۔ کوکټۍ کلکے زنځیں که ۔ بغیر زما نه ور چاته هم لرے نهٔ کړے ۔ زهٔ بهر ښملم ۔ کورم چه دے څه کوی ۔ دخدائے د قهره نهٔ یریږی ۔ زړهٔ کښے ئے اووے دا ډیره بد نصیبه ده هلته هم د سر یره او دلته جورے هم د قصاب کره ئے شپه شوه ۔ ددے نوک به هله ازاریږی ۔ چه تر څو ما سر خوړلے نهٔ وی ۔

چه نوروزخان ښه کچه پخه اوکړه او په خپل یقین دوغ زړهٔ شو ۔ فضلی ته ئے اووے ۔ کوره بیګاله که په موټر کښے څوک راغلل ۔ نو غم غرض به هله کوے چه موټر دمنځه اوځی. ناتر سے دزمے به اوکړے ۔ لکه چه دخان په کورسړی راختلے وی ۔ فضلی وے ۔ خان پوے شوم ۔ ددهٔ په نیمو نیمو او د خپل ول په خبرو هم دے پوئیده ۔ عمر ئے ورسره تیر شوے وو ۔ خان بل ملک جوت کړو چه کله دزمے شی نو فضلے به د مخے نه اولے چه ژوند ے پاتے نهٔ شی ۔ هغه ورته اووے چه خان ستا پیسیان ترے خلاص ۔ کلمے ته به هم نهٔ سمیږی. سینه به ئے غلبیل غلبیل وی ۔ غرض په کښے دخان داوو ۔ چه په کورسړی راوختل ۔ په دوارو ارخینو دزو کښے فضلے مړشو.

سپردشوے جینئ ئے اوتښتوله ۔ سرکار ته به خبره روغه وي۔ که دعوئ کیږي ۔ یا به دجینئ په پلار او رونړو ۔ یا به په هغے هلک د فضلي (۳۰۲) تین سو دو به لاسیوا وي ۔ بله داچه فضلي ته خو زما هرڅه معلوم دي۔ په رموز رموز کښے به راته پلار پلار کیږي ۔ په بړو او منتونو به ئے ترڅو ساتم۔

بي بي بهر ځملاسته ۔ سره د هرڅهٔ ئے زړهٔ په ترارړه وو ۔ ډرے په ډے اوریده ۔ خو خوب چرته ۔ ویښه وه۔ خو آخر سترگے ئے ورغلے ۔ دیو ے یوے نیمے بجے عمل وو چه سري راغلل ۔ لارے گودرے ورته ازاډے وے ۔ پڼرته هم ئے نهٔ وه ۔ څه د دارو ککړ رومال ئے ورته په خوله او په پوزه کیښود ۔ بي بي ئے په موټر کښے واچوله ۔ چه موټر د مینځ نه اووت ۔ فضلي بے واره ډزے شروع کړے ۔ لکه چه د خان په کور داکه پریوتے وي ۔ څهٔ گولئ د مخے نه راغلے ۔ فضلے اونګید ۔ سینه ئے سورئ ورئ شوه ۔ عالم آدم راجمع شو ۔ د لالمتینونو په رنړا خلقو اولید چه د خان ناظر فضلے مړ دے ۔

نمر چه سرپیکه وهله ۔ سري د رات نه غیرے ته اوریدلي وو ۔ چه هلته ئے اوکتل چه عمر په شا سپین سرے ښځه ده ۔ دهٔ خو ے چه پیغله ده ۔ جینئ ده سره سپینه ده خشته ده ۔ دا خو بوډئ ده ۔

" نوروزه کسکرئ کښے به دِ اوبه اوښکو. ښیے به
ڦے کړے. تا چا سره کو تے ما تے کړے. ښکلی او
بیا مونږ سره - مونږ نه خو دنیا امان غواړی. ستا
وینه تودره شوے ده. په سرو ښکو دِ ښیے کیښودے
په پاکستان کښے نه دخدائے په ویړه دنیا کښے.
که په سمه ئے که په غر. که په اسمان ئے
که د اوو ے مزکے لانده ے خلاصیدل دِ نشته. د
مرګ په خوږو به هله پوئے شے چه ځرمن درنه په
ژونډونی اوځی."

نوروزخان چه خبر شو چه خبره خطا شوه. خپله ښځه
ئے لاړه - دریل کاډی په پاټلئ ښغ ښغ اوغزیدل. د اورګاډے
پرے راغے. ټول ئے قیمه قیمه کړه - غوښے ئے راټولوکے کړے.
سره د پیژندګلو ورشاؤ ئے انکار اوکړو چه کنی دا نوروزخان
دے. خدائے خبر چه جنازه ئے اوشوه او که نه. دکیتهئ د
مزدورانو بانډے کوم پیټ پروت وو چه د غوښو دپنډوکی جناز
به ئے کوله. دغسے په دوغل کښے پړے ئے خوړے واروے. درحمن بابا
دهغه خدائے پاک په جنت کړی چه دیر ښخوا ئے عالمو ته
نصیحت کړے دے. ے

کوهے مه کنه دبل سری په لار کښے
چرے ستا به دکوهی په غاړه لار شی

(رحمن بابا)

# اول اُوخوره دځان غوښې

# بیا

# اُوخوره د ښکار غوښې

---

ظفرے د دیوال خوا کښې ناست وُو ـ تهوسکیدو ـ څوکو نه ئې په سترګو کښې منډلې وو ـ غټې غټې رنړے ئې څڅیدے او په مزګه ئې څڅه کړ ښئ رابنکلے ـ په دے کښې پرے امین خان راغے ـ ولے ئې ـ ولے ظفریه ـ بیا څه چل شوے دے ـ

" کاکا ! هسې خو ګیا ما غرمه راوړے وه ـ خو مامی ړم بیا امزرے د بریتو ېنولے دے او په یوساه ګیا ده چې مور او پلار دِ ترے اغشتل نو دے به دِ اول ستې وتې کړے وے ـ لک بک راته ناست دے ـ خوړی څښلې ـ ډکینړی تشینړی ـ یوه غوا ده هغه هم دے مړولے نه شي ـ کذار خوځې په خپل زوی که وُو خو اولګیدم زهٔ ـ داچې کله زوئې اولی نو کاکا ـ د خدائے شان دے په هغې ګوزار هم زهٔ لګم ـ مامی ړم رښتیا وائي چې د مور پلار د اغشتو نه وړاندے که زهٔ ستهکوړے

وے ۔ نو بنه به وے ۔ دا دومره ستغے سپورے ۔ ویسا
کنټل خو به ژ نهٔ زغمل ۔"
امین خان اووے ۔ خفه نهٔ شے خوشحال بابا هم ناسته ویلے دی۔

٥

کهٔ اسمان دِ دمزری په خوله کښے ورکه
دمزری په خولے کښے پرے نهٔ بږدے همت

ظفریه ! راکړه دا بنے لاس دے چه د قسمت کرښے دِ اوګورم ۔ دیر په اُپر سپر خو نهٔ یم خو بیا هم په کورے پښے پوهیږم ۔ کاکا ماته ښکلے کرښے معلومے دی ۔ په پردو درونو چه لوئے شی اولا سوړ سوکړک ئے پیغور وی ۔ دهغه دبخت کرښے به څهٔ وی ۔ مرده ۔ ستا خو د زړهٔ بدیره شوے ده۔ ستا دے عمر ته ګوره او دومره ښخو خبرو ته ۔ تا نه چه رب مور پلار اغشتل ۔ څه سوب به ئے درله جوړکړے وی۔ د الله پاک کارونه ټول دحکمت دی په هغے نهٔ ته پوهیږے او نهٔ زهٔ ۔ هسے خو نهٔ وائی چه بے زحمته راحت چا نهٔ دے موندلے ۔ غم او ښادی ددے دنیا دور اوخور دی ۔ ظفریه زړهٔ مهٔ وهه ۔ دلاس کرښے دِ ډیرے ښے دی ۔ د تکلیف او دخفکان ورځے ډیر زر دختمیدو دی ۔ اخر کښے به درنه ډیر لوئے سړے جوړ شی ۔ راځه چه ځو شوتل له ۔ یو مضبوط کیدے به زهٔ راړم ۔ او څه مره یوه کاسیلے خو به ته هم

راوړے ۔ چه ما می دِ خوشحاله شی ۔

په شاملات د دوه کندو جګړه وه ۔ دوه اړخیزه توپکے راوتے وے ۔ قرآن شریف په سر پکښے مشران اوګرځیدل ۔ ونه تود شوے وه ۔ نهٔ ئے قرآن منه او نهٔ دمشرانو زاری منت ۔ ناترسه دزے اوشوے ۔ دظفری پلار پکښے اولګید ۔ اومړ شو ۔ دشاملات دزے خو دیرے کنځل وی ۔ پته ئے هیڅ نهٔ لګی چه دظفری پلار چا اوویشت دچا لاسه مړ شو ۔

دظفری مور پښتنه وه ۔ په خولے خو ئے هیڅ نهٔ وے ۔ ځانله به په سوچونو کښے غرقه به وه ۔ پتے ترے لیوں اونیوه ۔ روزئ له ډیانه شوه ۔ مزدورئ ته ئے لاس واچو ۔ پنبه به ئے الاجی کوله ۔ په سرخه به ئے ریشل کول او اتے به ئے جوړولے اودغسے تود سره به ئے د شملو کوټ سره تیرولو ۔ زوئے چه دپنځو کالو شو نو سکول ته ئے بوت ۔

ظفرے اوس په اتم کښے وو ۔ دحده او تے قابل وو ۔ خدائے پاک ورله یو ذات له عقل فکر ورکړے وو ۔ چه استاذ به یو ځل ځهٔ اوښودل ۔ دظفری د ذرهٔ په تختی به نیک وو ۔ هم دغه وجه وه چه دے به هر امتحان کښے دټولو نه اول راته ۔ استاذانو به ئے ډیر صفت کوؤ ۔ چه مور ئے خبر شوه نو دخوشحالئ نه په جامو کښے نهٔ ځائیده ۔ په سجده به

پریوته او د الله شکر به ئے ادا کړ. خو په دے بیا هم څوک نهٔ پوهیدل چه په څه به ئے غټے غټے اوښکے راروانے وے چه دے به په غلا غلا پاکولے چه څنی څوک ئے او نهٔ وینی.

شپږ اتهٔ کاله پر له پسے الاجی او سر خے سره ئے روزګار وو. ګورے به ئے هر وخت پښتو سره جوختے انړولے وے. یخنئ او وهـله. تو خیده به. جوشندے او نور کورنی دارو درمل چه چا به څه ښودل دے به کول. هـره وکی به ئے د درده تاویـدل او هر وخت به ئے مره تبـه وه. مزدوری ترے نوره پاتے شوه. خو چه بیا خپلے هر یانے ته به ئے اوکتل. نو د زړهٔ په زور به لګیا وه. نهٔ خو تو خے سنهٔ کیده او نهٔ تبـه شلیده. چه کله ئے په خراشکی کښے وینـه اولیده نو سینے له ئے راواچولے. زوئے څان ستـه راجوخت کړو او په چغو چغو ئے اوژړل. ظفرے اوس پـه هر څهٔ پوهیدهٔ. وے ئے مورے. خدائے پاک به دښه کړی. څه چه د شیخانو حکیم صیب له لاړ شو. اوچت حکیم دے. او بل خدائے پاک ورله په لاس کښے شفا ورکړے ده.

صباله سحر وختی مور او زوئے حکیم صیب له لاړل. قیصه ئے ورته اوکړه. وے ئے توخی کښے م وینه راځی. ورته ئے وے. چه تا خوړلی څهٔ دی؟ هغے ورته اووے. کورنی دارو چا راته خودلی دی. هغه م کړی دی. سونډ سپین کئے او نور ګرم ګرم توکی. په دے خیال که سینه م پخه شی او توخے ښه شی. ورته

وے بی بی کار مار څه کوے ۔ حکیم صیب څه به درته اووایم ۔ دشپږ
اتو کالو راسے الاجي سرخه کوم ۔ دمور او د زوئ گذاره پرے روانه
ده ۔ حکیم صیب شونډه غاښو کښے اوچیچله ۔ چه پرپوس ئے
غلبیل دے ۔ درغیدو امید ئے په ظاهره ختم دے ۔ خو د
لږ سوچ نه پس ئے څه معجون ورکړل او څه پوڼړئ ۔ ورته
ئے اووے چه داخلاص شي نو بیا به راشے ۔ دے دلو پتے د
پیسکے نه ئے پیسے راپرانستے ۔ خو حکیم صیب اووے چه کم خیر
وی سبه شے نو بیا به پیسے راکړے ۔
ظفری دحکیم صیب د مخ دکاسے جاج اغستنه چه شونډے
اوچیچلے ۔ نو پوهه شو چه د مور م نزے رنځ دے ۔ په هغے
وخت کښے چه به په چا د نزی رنځ اواز اوشو ۔ لکه چه په
تهوپک دِ اوویشت ۔ کورته چه راغلل ۔ مورته ئے وے ۔ اوس
به الاجي سرخه نهٔ کوے ۔ مورے اوس زهٔ کلک یم ۔ زمونږ
چهٹیانے دی د اتم نیتجه لا اوتے نهٔ ده ۔ د نواب خان دِی
کور جوړیږی ۔ ملکار سره به د تهاتکی مزدوری کوم ۔
بس کړه ۔ مالگے راباندے مه دوړوه ۔ په ملدو غوبنی م
اور مهٔ بلوه ۔ څه ورشه ۔ په دو ماما ته دِ آواز اوکړه ۔
چه راشی ۔ بنه وه ۔ کور ووُ ۔ راغے خورته چه ئے اوکتل
زړهٔ ئے تینګ نهٔ شو ۔ سلګئ ئے اووهلے ۔ خورورته اووے
مهٔ دوره ۔ دځوانو زړونه کلک وی ۔ زهٔ اوس شوے نهٔ یم ۔
ماخو تر دا وخته دخپلے هریانے نه خبر کړے نهٔ ئے ۔ چه بهٔ ما

خرنګ تیره شوه . او تیریږی . ماخپل زوئ ته تر دا وخته دخپل

دپلار دپولے پتی نه خبر کړے نهٔ دے چه چا نیولے ده . او

نهٔ رم ورته داویلی دی چه ګنی ماما سره د زمونږ څه کیږی .

ماخپل زوئ ته یو میں په کوشته کړے دے . چه دے تاکلے نخښے

ته به ځان رسوے . که پاک رب سرے کړے نو بیا هر څه

ډیر . ما ورته دسینے پټے نهٔ دی بخلی . که د ترهٔ نه یا د

ماما نه د دپولی پتی تپوس اوکړو . نو یک ورته نه په غاړه

کوم . او نهٔ ورله دشمنی ګودم . دوره دا اخری خبره رم

اومنه چه ظفرخان درنه ترهٔ بو نهٔ ځی . زما یره ده چه د

مزکے دپاره ئے ګس ور نهٔ کړی . کورته به ئے بوځے

ما دهغهٔ تربیت په داسے انداز کړے دے چه هغه سبه

چاته خفه کیږی نه . خیر دے وروره . سړے پاتے تمکړے

ورکوه خو چه دسبق خیال ئے اوساتے . دا د نو پلار زوئے

دے . وینه ئے پنبتنه ده . که رب سړےکه ستا بدل به

به څو چنده خلاص کړی . دوره . د ابئ دادا راوړے

رم ئے . ګوره چه دا اخری خبره رم او منے . څه اوس ورځه .

دظفری مور به . بنے ایزلے پاکے جامے اغوستے . د

سر زروکو به ئے ډیر خیال ساتهٔ . پاکه صفا به وه .

مخ لاس او پنبے به ئے هر وخت په صابن اینزل . تن بدن به

ئے پاک صفا وو . خیال ئے داوؤ چه کور کینے رم نهٔ لورشته او

نهٔ خور . هسے نه چه په مروتی بے خونده شم . ګوانډ کینے یوه

کنډه بنځه وه - دے ورته خوږ وئیلے وو - هغه ئے را اوغوښته ورته وے خورے دمرګ هیڅ پته نهٔ لګی - خو زهٔ نوره شوے نهٔ یم - مرګ حق دے - تیښته ترے نشته - دا پاکه ټوکره واخله - په دے به راله زنه ترے - چه کوره خوله م وازه پاتے نهٔ شی - دا دکعبے شریفے دغلاف اتلس دے - دا به راته په سترګو کښے بد دے - هسے خو م ځان او جامے صفا ساتلے دی - خو مرګ سخت دے هسے نه چه په لوسو پوسو کښے جامے یا دسر ویښته ګډ وډ شی - سرکښے به راته ګومنځ راکاږے - او جامے دغلته بنے پرتے دی - هله به چم ګاونډ خبرے چه ما سنباله کړے - ځکه دوست دشمن دمړ چاشته چه په مړونی راپیے ډرے اونهٔ وهی -

صباله ظفرے وختی عزیز ګلکار سره کار له لاړ - ټوله ورځ ئے کله تماتکے او کله بنځتے چلولے - لاس ئے نازک وو - کار ئے چرته کړے نهٔ وو - نو ستړا کے تنړاکے شو - مازیګر چه کورته راغے - دمور نه ئے پټ لاسونه ټکورول - او په سرو کړو تیلو ئے غوړ کړل - مور ورته اووے - بچے ټوله ورځ چرته وے - دودئ له هم رانغلے - دهٔ ورته اووے - چه سکول ته تلے وم - چا وے چه نن به نتیجه خیژی - مرګری سره م ورځ تیره کړه - وے بنه دهٔ بچے خوشے اونهٔ ګرځے.

ظفرے به ګلکار سره کار له تهٔ - اوس هغه پیژندلے وو - نو د دروند کار نه به ئے ساته - یوه ورځے هم دغسے

کار کښې بوخت وو چې یو هلک راغې - راد وکړه ظفریه - مون
دِ ښه نهٔ دی . دهٔ ورمنډه کړه - ښې لاس ئې دخټو ابته
وو . مور ئې دوینو قے کړے وو او اینه سګی ئې تو سے
تو تے په کښې پرتے وے . ورتږغاړه وت - ډیره بے کوره وه۔
وے ئې

ظفر خانه مابخښلے ئې - کورے سبق پرے نګے
که هر څو سخته دریاب ده راشي - مابخښلے ئې ...
.... مااوبخښه ."

اخری سلګئ ئې اووهله او سرئې یو طرف ته اوړغړیدهٔ -
ماما ئې راغے مړے ئې کورته یوړی - مامائې تندے تریو
کړے وُو - چې داد ناحقو شرق دکومه - خو چې د مخ نه
ئې پلو اوچت کهٔ - دظفری مور پاکه پاکیزه - تیاره
سنبال کړے پرته وه - او د مخ نه ئې شغلے ختے . ظفری
چې کلکار سره په مزدورئ کښې څومره پیسے ګټلے وے .
ماماله ئې ورکړے - وے ئې دا ږم مور راکړے دی - او داوصیت
ئې راته کړے وُو . چې

" بچے کورے په پردی کفن کښې ښخه نهٔ شم۔"

ماما ئې ډیر اخوا دیخوا اوکړل چې زهٔ ئې رور یم په مائې هم
حق دے - وے ماماجي دادهغې ارمان دے - او وصیت هم .
هغه به قبر کښې خوشحاله شي - چې په خپل کفن کښې ښخه شي.
مامې ږم رااودانګل - وے پیسے واخله - هغې به هم دے کورکفن

له ساتلې وے ۔ ستا دنګيدو ځائے ډير دے ۔ ظفری خوار خوار
اوکتل ۔ وے ئے لويه ذاته ستا کړه دی ۔ کنی نو هيڅوک پردی
جيب ته نهٔ ګوری ۔ دريمه او جمعه تيره شوه ۔ خپل خپلوان
رخصت شو او دوئ سا صورت شو ۔ نو ماما ئے بنځے ته او وے۔

" چه ظفرخان زما خورئ دے ۔ دے به دلته
دی ۔ دخدائے په ويړه دنيا کښے ددهٔ هيڅوک نشته
دے يتيم دے او يسير هم ۔ ددهٔ به ډير خيال ساتے
خدائے پاک به درنه خوشحاله شي ۔ او دنيا به درته
دکوتو نيوئ هم نهٔ شي ۔"

لس شل ورځے پس د اتم نتيجه اوخته ۔ ظفری ډيرے
نمبرے اغستے وے ۔ ټول سکول کښے اول راغے ۔ په نهم کښے
ماما داخل کړو ۔ خو هائی سکول دکلی نه ډيرے ميله لرے وو۔
د سائيکل وس ئے نهٔ رسيده نو پياده به تهٔ ۔ مامی چه اوکتل۔
چه دے خو مستقل په سرتپاکو دے ۔ نو د غوا مزدور له ئے
رخصت ورکړه او ذره کښے اووے ۔ چه زما دوئ سپو نهٔ دی
جوړه کړے چه ظفرے د د سوک دسره خوری ۔
ظفری چه بيګانے سور سکرک د سپياکو خوبن لن کښے لوغړن
که او د چايو کوټ سره ئے نهر کندير که ۔ بسته ئے غارے
ته واچوله او لکه روان شو ۔ مامی ورته د روستو نه اواز اوکه۔
چه ظفريه غوا نهره ده ۔ لور به ځان سره واخلے ۔ پټی کښے
به ئے څرته جاره کښے پيټ کړه ۔ د سکول نه چه بيا راځے۔

نو پنڅه شوتل به ځان سره راوړے.

ظفری خو لور وا غښت خو چه والپسی کښے نهر نهور. درمیله پیاده مزل دشوتل پنڅه په سرئے راپه زړه شو. نو د پښنو نه ئے مزکه اوتښتیده. خو په دے کښے ورته مور راپاده شوه.

چه " کوره سبق پرین دے به نه. که هر څو مره سخته درباندے راشی."

دغه ئے سریکار شو. نهرے او سترپے سره عادت شو.

دچا قسمت کښے راحتونه په دلو پراته دی
دچا په زړه کښے ارمانونه په سلګو پراته دی

(نامعلوم)

امین خان ئے دور عزیز وو. ستر پردہ نه وه. خپله د یتیمئ سپیړو وهلے وو نو په ظفری به ئے زړه دردیده. چه دے به ئے نار نهور درے میله مزل. تولو ورځ سبق او بیا ګیډه ے شوتل په سر راوړل چه دا به اولید. زړه به ئے ارے ارے شو. یوه ورځ ئے پنڅه په سر وو اوپښید لے تبه ئے وه. کرکوزے وهلے. هر لس ګامه پس به ئے غور زوو. لړ چه به ساه سورت شو. نو بیا به ورلاندے وت. امین خان ورنز دے شو. هلکه ستا خو تبه ده. نن خو به دِ نه راوړه. راچه درسره ئے یوسم. کاکا څه اوکړم. د مائی په کتاب کښے زړه د اوسپنے یم. نه ماله تبه شته. نه سرخوږ ے. ظفر خانه

کله چه ناسازه ئے - نو ماته به اوان کوے - ستا په پنځو شوتل راوړو زهٔ شلیږمه نه -

یتیم دړړا عادت دے - زړهٔ ئے کلک دے - ظفرے سختو په زړهٔ دیر کلک کړے وو - نهٔ یرے دهاړ غرمو او نهٔ یرے د یو مایخنئ څه اثر کولے شو - د ماغی په هر حکم کښے به ئے لم لیټ کولے نهٔ شو -که چرته خدائی ده -څه کمے به راغے - نو په یوه ساه وینا کنځل ستغے سپورے -خیرے ارزان به ډیر - سترګو کښے ئے د اوبنکو سیلابونه اوچ شوی وو - ځکه یوه ورځ خو نه ده .چه ده به اوښکے څڅولے وے -هم په دے دستوں ورځے شپے تیریږے - ظفری لسم پاس کړو په ډیرو ښو نمبرو . د دے سختو نه د خلاصیدو د پاره د تیښتے د عزت لار ازاده شوه.

ظفرے فوج ته لاړ - دفتر کښے بابو شو - څه موده خو ئے دلته سنتر کښے تیره کړه - خو بیا ئے یونټه د برما محاذ ته لاړه - جاپانیان خو په ترقی په مخه رادوان وه - خو امریکے د هیروشیما او ناګاساکی په ښاریو ایټم بمونه اوغورزول - نو سلامی شول - فوجیان بیا واپس راغلل - ظفر چه راغے نو دلته په یو دفتر کښے مشر بابو شو - خپله هم قابل وو - د انګریزانو سره په دفتر کښے د پاتے کیدو له کبله په انګریزئ ژبه کښے ډیر ښهٔ شوے وو او افسرانو سره به انګریزی ژبه ئے داسے ویله تا به وے چه ددهٔ مورنئ ژبه ده -کاله نهٔ دے انګریز دے -

ظفری ته به اوس غلقو ظفرخان وے - سختے ورځے تیرے

شوے - اوس خو ساہ صورت او پہ سوکالئے وو - سبق ئے مینہ خو د پخوا نہ وہ - نو اول ئے دولسم پاس کرو او بیا ئے ورلیے سمدستی توارلسم - پاکستان جوړ شوے وو - هندوان تلی وو - دۀ کسوډین محکمے تہ دکوں د الا ټمنټ دپارہ درخواست اوکړو - کور ورتہ الاټ شو - کورتہ چہ ننوت - نو خراب شوے وو - پہ یوہ کمرہ کښے بنۀ ډیر کتابونہ خوارہ وارہ پراتۀ وو - دۀ راغونډ کړل چہ ئے اوکتل د قانون کتابونہ وو - یوہ عظیمہ خزانہ ورلہ خدائے پاک پہ ګوتو ورکړہ - کیدے شی چہ دا بہ دیو هندو وکیل کور وۀ -

ظفر خان پہ لوئے کور کښے یواځے اوسیدو - اخلی پخلی او خبرو اترو لہ هم ډیریان وُو - امین خان بنار تہ راغلے وُو - دۀ ورسرہ خبرہ اوکړہ چہ اوس لخیرہ پہ خپلو پښو ولاړ یم - کۀ تۀ ، ام ماما او چاچی کرہ لاړ ے - ما ای سرہ ام دِ خبرہ اوکړہ نو پہ "بنۀ" او پہ "نہ" بیا ما سرہ خبرہ اوکړے - ظفر خانہ خبرہ دِ بدہ نۀ دہ - ډیرے تږسیکے دِ تیرے کړے دی - کہ کور دِ اباد شو - نو ددے نہ بہ بلہ غټہ خبرہ کومہ وی - امین خان خپلے ښځے سرہ خبرہ اوکړہ - تۀ ورشہ - دظفر خان مای سرہ اووایہ - ټول واک اختیار دهغے دے - کلہ چہ مای خبر شوہ نو پہ دوہ دوہ نہ ټینګیدہ - وے ئے زما پہ نوړئ شتہ شوے اوس زما د مور میړہ شوے - ما خو دۀ تہ د غوا دمزدورہ اوچت کتلی نۀ دی - دے ازلی سپیرۀ خو مور پلار داول نہ ستړلے

دی - اوس ئے موږ لیږے راواغشتہ - ورته وایه خوږ دروندکښینه.
بنه په غوږو واوره - که دانوم دیبا واغشت نو بنهٔ به درله نهٔ
شی - امین خان ټوله خبره یو په یو ظفرخان ته اوکړه - وے
کانړے پرے کیښ دہ - هغوئ په لیونئ ځانګو ځانګی - وائی موږ
ئے د غوا مزدورله نهٔ شو ورکولے - لارے دړوند دی - کاکا
ددے ځائے خبره یاد لره چه ایساب وی نو بنځه دکھلا بېته
راځی -

ظفرخان ایل ایل بی ته زړه رااوچت شو - دکتابونو
ذخیره نوئے مونږ ته وه - دغے ورځو کښے به دشپے کلاسونه
هم لګیدهٔ - دهٔ داخله واغشته - دورځے به دفتر کښے وو -
ماښام به کالج ته تهٔ - ددب کړهٔ وو - وکالت ئے هم پاس
کړو - او یو اوچت وکیل سره شاګرد شو - وکیل هم تکړه
وو - خو دے ورسره هم سم روان وو - دمقدمے تیارولو
کښے دوکیل نه به ستړی دیره کوله - دو رومشهور شو
اوس دے وکیل شو - استاد به ورله واړهٔ واړهٔ کیسونه
ورکول -

ظفرخان په لږه موده کښے ښه اوچت وکیل شو - دا
قابلیت ئے دلرے برے خور شو - دے به چه چا وکیل کړه
نو دهغهٔ کیس کټل به یقینی وُو - فوجداری او دیوانئ کښے ښه
یاد شو -

دماما زوئے ئے دپولے په جھګړه وژے اوکړے - سرے

زخمی شو او په دهٔ دعویٰ اوشوه - خلقو وے کیس سخت دے - خدائے خبر چه خلاص شی - د موقعے گواهان مضبوط او په بنودلی شوی بیان کلک ولاړ وو - ماما ورله راغے قیصه ئے ورته اوکړه - دهٔ ورته اووے خدائے به خیر کړی - په پیشیٔ کښے په جرحو گواهان په مخه واغشتل - لل گل شو او په اوتوبوتو سر شو فیصله د دوئ په حق کښے اوشوه - هلک خلاص شو.

ظفر خان ته به اوس خلقو ظفر علی خان وکیل وے - دنوم به ئے په ډیر درناوی اغشتے شو - ډیرے بنے پیسے ئے کټلے. موټر ئے واغشت - او په بنار کښے ئے یوه بنهٔ اوچته بنګله جوړه کړه - مقدمے ورسره ډیرے وے - سرکرولوته به اوزګاریدٔ نه - ملاتړ وکیلان ورسره وُو - یو درز ئے خوړوُ -

ماما او مامی ئے کور خبرے کولے - چه تیروتو چه ظفر خان ته مو انکار کړے دے - بنځے ورته وے - ماته څه پته وه. چه د دهٔ تندی کښے د امزری وینبته دی - او دومره لوئے سړے به ترے جوړیږی - کهٔ تش انکار دِ ورته کړے وے. خو بنه به وے - تاخو پیغورونه او ستغے سپورے هم کړی دی - هغه ته به یو په یو رسیدلی وی - اوس که دِ خوښه وی - امین خان سره به خبره اوکړم - مخکښے خو به ئے دهغهٔ خبرے بنے منلے - ته هٔ ئے بنځے سره غوږ شه - او دغسے یو ورځ به بنار ته لاړ شو -

د جمعے ورځ وه چهٔتی وه - امین خان سره د بنځے ئے -

ماما او مامی څلور واړه بنار ته هغه کره لاړل - ظفرعلی خان ئے

بنه دارمدار اوکړه - ماما او مامی ته ئے وے -

"که زهٔ هر څومره لوئے سړے یم - خو ستاسو

دپاره هغه ظفرے یم - ستاسو احسان ترقیامته

نهٔ شم هیروولے - زهٔ که اوس څه یم - دا هم

ستاسو برکت دے -"

مامی ئے په صوفه کښے راغونډه کړه او خپلے ناکړدے یو یو په

یو د زړهٔ او مزغو په پردو په تیزئ تیریدے - ماما ئے هم

بنگله بنکته کتل - ظفرخان اوس امین خان ته مخ راواړوو -

کاکا ماله سل او زر ډیرے - که څومره اوچت ځائے ته لاس

اچوم - ما ته انکار څوک نهٔ کوی - جینۍ خو پریږده - او چتے

نه اوچتہ تعلیم یافته - خو نه دا زما دمور وصیت دے - ستاسو

راتلل کوز نهٔ شم غورزولے - ماما رم دپلار په ځائے دے او مامی رم

دمور - څرنګ چه ددوی خوښه ده هغسے به کوم زما هیڅ ته حاجت

نشته - بنګله بنهٔ لویه ده - سامان په کښے بنه دے -

خو زهٔ کلی ته په دے درتلے نهٔ شم چه نا اوزګاره

یم - پیشئ رم ډیرے دی - فیسونه رم اغستے دی - یو

یو پیشی تیاری غواړی -

کاکا که دا سے اوشی چه درے څلور کسه راشی - نکاح

به ئے دلته اوتړو - خبره به خلاصه شی

زهٔ خوشحه جت نه یم . چه دزے دومیتھے به
کوم .

امین خان پوهشو . غلی ئے ورته اوکتل . چه
داشنا په زړهٔ او په مزغو کښے هم هغسے کهلابت دے .

سه

سیم و زر حله مهرویان دځان زیورک
ویلی چه په اورشی پر ختمک ئے زر کوماتک

(علی خان)

---

# جامه چه د پوُرشي
# پهٔ ځان پورې د اورشي

---

یه ! دا نځرګله په خیرونې . ډیره موده پس دِ لار غلطه کړه . سړے چه ژوندے وی . نو یو بل اووینی . ورک پهٔ مرګ شی . بنه ده چه راغلے . یو بل خو به په غریډلوسترګو اووینو . وایه عباسه د مرے بلا خلاصه . خان لاله خپل غرض په زړهٔ راوړولے وے . خپسه را باندے ناسته ده . سائے راته په سکیندو کړے ده . که چغه وهم . اوازِ م نهٔ خیژی اوکه د پاسیدو هسه کوم . رقیدو ته مِ نهٔ پریږدی . هسے سرګومه شوے یم . سوچ اوفکرِ م لل کل شوے دے . د ما شوړے سر رانه خطا دے . مونتل ئے راته ګران شوے دی . بنه ده چه تاسو مِ خیال ته راغلے . کهٔ د دے بوختے نه م اوکابږئ .

خان لالا . چه کله نوکرئ ته راغلے یم . نو بال بچ راسره

وي - عمر م تول په سرکاري بنګلو کښې تېر کړے دے - مګر و
سره خو م سيالي نهٔ ده کړے - خو مجبوري وه - هسے نه چه غوږ
م د پرېکولو شي - اوس لخيره ماشومان لوئے شوے دي - دهغوئ
سبقونه ، روغ رنځور ، کلے اولس - نو تا نه څهٔ پرده - په تنخوا
کښے ګذاره ګرانه شوه - ما وے راشه کلي ته لاړ شه - کلي کښے خو
ساګ خشاک دير - د چوړي بهشتي حاجت نهٔ وي - او بل دا د
ناترسو بلونو نه به هم لږ دمه شم - دا د بجلئ بل - دا د
اوبو - دا د ګيس - که م ولي سپک شي اولږ په سوکالئ شم -
خان لالا - ما وے چه سړے مړ شي - دين نه په محشر شي -
د مور پلار زوړ کور دے چه په کښے کوم ذهني سکون او خوشحالي
ما اوليده - هغه د بنګلو په اوسيدو کښے نهٔ وه - زهٔ چه
کور کټ کښے څملم - ما ته پلار مخامخ کټ کښے ښکاري - کوم
کښے چه به د هغه ناسته پاسته وه - او مور م په کټوئ
ځمځئ اخته وي - څرنګ چه په ژوند به د هغے دستور
وو - زهٔ داسے وينم چه لکه موږ روژه خويندے مور او پلار
د شکور نه ګير چاپير ناست يو - په تصور کښے دومره ژور تلے
يم چه د دنيا ومافيها نه خبر نهٔ يم - کله خو م د الماس دي
مور او خوزوي - چه يو سړيه په تا څهٔ اوشو - په غږيدو
اودهٔ ئے - لويه څوانه رااورسے - دوبه شوم - کله م زوئے
راشي او کله لور - زهٔ سر اورقوم - په مخ او سترګو لاس راکاږم
او د الله پاک نوم واخلم - څرنګ چه د دير ښځه خوبه سړے

بیدارشی ۔ نۀ دۀ ذهنی کیفیت حال کون وایم ۔ او نه تر د حینه بل چاته بجیبه خوبه مشغولا ده ۔ خو ښځه شکی شوے ده ۔ چه جور سرے لویں لے دے ۔

دالماس دِ مور پروے په سرکه ۔ مور کره لاړه ۔ سینه ئے دربوله چه مورے دو به شوم ۔ په ځوان جان سرې څه لوبه اوشوه ۔ مور ورته وے خدائے رم دِ نه غلطوی ۔ څۀ دکودو جادو اثر دے ۔ یه مورے ! مونږ خو دچا ملاسته غوا ستۀ ده پاسولے ۔ پاک رب پرے زمکه دکه کړی چه په مونږ لیپے ئے راواغښته ۔ ما دۀ ته وے چه کلی ته نۀ ځو ۔ هغلته خلق ځوک زغملے نۀ شی ۔ خو دے متاک غوز یو خدائے یاد کړے وُو ۔ کلی کښے کنګوسے وُو ۔ چه په عباس چا څه کړی دی ۔ غټے غټے ئے بقے کړے دی ۔ کوته په دالان ګرځی ۔ څه بے کوره او بے سوله شان ښکاری ۔

زمونږ په ګوانډ کښے دا بوډۍ ښځه څرنده ۔ خان لاله ۔ ته خو به ئے هم پیژنے هغه ۔ هغه زرینه ابئ ۔ مونږ کره راغله ۔ وے ئے ۔ یه ۔ لورے په تا دومره سخته ده ۔ او ما خبره نه ۔ پاسه چه ځو ۔ وتي باچا له ۔ چه کتاب اوکوری ۔ مردے چه چل څه دے ۔ کور دِ وران شی چه د بل کورونه ورانه وی. نن صبا خو داسے کوډے جادوګان دی ۔ چه سرے ددمکه نه تیره وی ۔ باچا صیب زما د نوم او د پلار د نوم د ابجدو څه حساب اوکړو. په جمع تفریق ضربونو تقسیمونو ئے ځان د برمه پریست وچه څۀ

نتیجه ئې اوښکله - کتابونه ئې ورلیږي لټ په لټ کړل - اخر ئې په یو
ځائې کوته کېښوه - سر ئې اوړقو چه د ظالمانو دِ وار تیر شي - ترس
ئې نه راځي - چه داسې کوډې جادوګان کوی - بنه ده چه په وخت
راغلئ - کنی نو صبا بله ورځ به ئې په قبر کښې ځان تیزندئ
کړې وُو - اولکه د توریئ به ئې پاس په هوا کښې تماتئ وهلې.
خو څه خدائې پاک به خیر کړی - دا تعویذ به په شنه ټوټه
کښې اوګنډې - او په شین تار به ئې په ټوپئ کښې په تندی
اویزان کړې - اودا ساختونه به په نهره سحر او مابنام په
اوبو یا په چایو کښې ورکوې - حضوره خو به ښه شي - په کوم
کور کښې چه تاسو نن صبا اوسئ - په هغې دغیبو د عالمو
درونه سورې دې - دا به په هفته کښې دننه زرتر زره پریږدے
چه سرې بې وتمه شي - کنی نو یاد لرئ د سر دپاسه سر
شته هسې نه چه خبره زما د وسه بهر شي نوکرانه به شي.
ما غاړه خلاصه کړه - عمل کول نه کول ستاسو کار دې - لکه د
مچ به وزرې مرورې او یاره باره به تیره وی -

دالماس ( ) مور چه کورته راغله - بیائې د اکاهو نه راغلې
وه - میاندې لونړه په یو چغر وې چه مادرته نه وې.

" چه په سرې څه بلا ده - بنه ده چه په
وخت لاړو - کنی نو خدائې خبر چه څه ناترسې به
کیدې - په شنه ټکړه کښې تعویذ اوګنډه - په شین
تار ئې په ټوپئ کښې اویزان کړه -"

کور خو به زِمُ تعوین له په تندی جو تِه ورکولے - خو بهر به زِمُ تهوپنی په بدِه وهـلـه - لکه څنګ به راته بد بنکاریدهٔ - ساختونه به ئے راته سخت او مابنام کومی ته بنکته کول - ورسره به په یوهٔ سا نکیا وه چه دا کور پریږدهٔ - د باچاصیب خبرهٔ اومنه - د دور زِمُ په سوات کښے تیـکه وه په کــړهٔ تـلےئےوهٔ. کور ئے اوزګار وُو - نو هلته داوپیدو - د پـلار کور چه مو پریښود - نو هغه تصوّر هم ختم شو - بنځه چه ساه صورت شوه چـه د سـړی نه پرغـز لاړه - نو سـرئے کیښود - چه په پردی کـور کښے به ترڅو اوسو - سړے خوستا دور دے خو بنځه به ئے چرته دا اوزغمی - سل خبرے او سل پیغور ونه - چه بیا نهٔ مرو نهٔ دغیږو - نو بنه به داوی چه په وخت د څان غم اوکړو - په جرنیـلی سرک چه زمونږ بنځه کنا له اوړئے ده - هسے خو زما د مهر هم ده - دے کښے به څان له بنګلےشان د بنګلے په شکل کور جوړ کړو - او څه به ورسره دوکانونه دا مدن ذریعه به هم جوړه شی -

دالماس (؟) مور ته زِمُ وے چه یه بنځے ویخرشه - په تا څهٔ اوشو - په ویخه اوس تهٔ خوبونه وینے - څه چه خو باچا له - په تا څه کا نے اوشوے - وے خندل - چه روغه جوړه یُم - چه زهٔ درته څهٔ ویُم - هغه به اوکړے کنی نو دغه د لاړم مورکره - کرځے به بیا په لوړو ژورو - بنځے مه مورکره څه رونهٔ دورکړه - خبرهٔ د صلاح ده - کور او دوکانونه لـه

خو ایساب پکار دے . نۀ ماسره ایساب شته - نۀ ډیوه - چه دیوا
به ئے دسترګو رپ کښے اباده کړی - بنګلے او دوکانو نو له خو ډیر
دوَلت پکار دے . تماشه خو معلومه ده چه تنخوا کښے مو ایله
خان ساتلے دے . دادیلے درک نه لګی - جی پی فنډ خو
ما موټر له راوښکے وُو - که دِ خوښیږ وی - موټر به خرڅ
کړم خو د موټر په پیسو به بنیادو نه هم اونۀ شی - بنځے وے
وار خطا نۀ کړے - دغه دِ لارم رور لیږے - راکړه جینئ داپړونے.
د الماس امور دورکړه لاړه - هغوئ خو د قیمص قطارونه
د اوله خبر وُو - دے ورته اووے - ایساب پکار دے - هغه
قره واچوله - د بنک مینجر ئے راپه زړۀ شو - ورته وے -
کینه - زۀ دغه دِ راځم - مینجر بنک کښے موجود وُو - هسے
خو ئے دلرے خپل وُو - خو نوره یارانه ئے ورسره بخه -
بټ بربنډ ئے یو وُو - قیصه ئے ورته اوکړه - غوږ ئے اوچکوُ.
خو ر راکړه ناسته ده - کل لاله کور جوړوی - ایساب ورله پکار
دے .

مینجر سینه او ډبوله - وے ستا دپاره نۀ مریم نه ژوندے
پنځویشت زره روپئ په یو نوم خو زما اختیار دے - څوارلس
روپئ سیکړه سود دے . کال پس به ئے ارو مرو داخله وے.
دا کلینزه قرضه ده - ستا د مخه به یو سنه اوکړم - که چرته قرضه
مو په ینتهه ادا نۀ کړه نو بیا به درله زره نوے اوکړم - د زرو
به وصولی اوبنایو او د نوو په نوم به قرضه - مینجر صیب ستاسو

ډیره منننه - مونږ به که خیر وی ضیا راشو -

ضیا له زهٔ او درے کسه نور (نوم ئے نهٔ اخلم) بنک ته لاړو.
مینجر کاغذونه تیار کړل او مونږ دستخطونه اوکړل - ایساب مو
راواغشت - کورته مو راوړهٔ - دشپے خوب نهٔ راته. سوچونه
م کول - دماما زوئ م سخت وختی راغے - وے ئے - په فکرونو
م توله شپه اوغموله - داخو راته فصلی قرضه ښکاری - لکه
دکنو فصل له پرے فارمئ سرے واخلے - کودونو او چارو له
او نوره تخم تغئ - او چه کال پس کوره خرڅه شی نو د بنک
قرضه به سره دسوده ادا کړے - تهٔ خوګل لاله - کورجورولے
دښختو سیمټونه خو امدن نهٔ وی - دا قرضه به دکومے ادا
شی - والله ئے په دے خو ماهم فکر کوؤ چه عالم دننوتو
نه مخکښے دراوتو تابیا کوی - ګل لاله - اوس هم لاڅه شوی
نهٔ دی - دنګلی نهٔ دنګلی - وخت شته -

خان لاله - اوس دلته راغلم - څه بنهٔ صلاح به راکړے.
عباس خانه - قیصه م په زور زیر واوریده - صفر نمرئ خوره.
چه تیر ولے شے - دابتدا نه دا دوه لفظونه په ما ډیر بد لګی
یو دسود او بل د طلاق - ددوارو نه م د پاک رب سره دیارانو
اوساتی - دماما زوئ چه درته کومه خبره کړے ده - شپارس انے
ټهیک ده - دا قرضے د فصلونو دپاره دی - تاسره پیسے نشته.
قرضه واخله - د فصل خصمانه پرے اوکړه چه امدن اوشی. قرضه
سره دسوده واپس کړه که اوس تهٔ فصلی قرضے په دا سے مد

کښې لګې چه دغې امدن نشته نو ادا کومے به ئې دکومے.

عباس خانه واوره . دبنک دا مینجر تاسو له دا تسلي درکوي. چه زهٔ به بدلیږم نا. که خدائې بدل شو بل مینجر راغے....

نو بیا که دا مینجر هم وي . نو دا دچا دپلار پیسے خونهٔ دي. کهٔ دبره د وصولۍ زور راغے نو هم دے به قرضے اووارنسټو سره اوکاږي . او ډیر په خوږه او ساده به درته وائي . چه خفه کیږه مه . زما وس نشته خبره دبره ده . دا هم بنهٔ په غوږ واوره . که چرته د بنک انتظامیې فیصله اوکړه چه وصولے بنے نهٔ دي . زړے قرضے وصول کړئي او نوے قرضے ( ایډوانسز ) ورکول بند . نو بیا به هغه قرضې وصولي او قرضې ایډوانس به څرنګ شي .

عباس خانه . په دے دِ فکر کړے دغے چه د بنک همه قرضے سود درسود وي . ساده سود نهٔ وي . تا یو لاکهه واغستے څوارلس دوپئي سیکړه سود . کال پس دا یو لاکهه څوارلس زره به وي او دغسے ورپسے ځه . نهٔ خو ته پینتره باز سیاسي لیډر ئې . چه چرته بنه هلته شپه . چه به ځان ته قرضه معاف کړے . او نهٔ څه د غضب په هغے او چتے کرسئ ئے چه د ناقابل وصول قرضه جات په مد کښے به واچوي . او سر به ورله ورک کړے . یاد لره دا حقے ننکئ دي . په قبر کښے هم په سرې راخیژي . تهٔ به وائے هیرے شوے . بنک به وائي ډیرے شوے . عباس خانه چه د ډیرے نه ئے بریت لوئے شي . او هغوئ وصولي ته لاس

واچوی ۔ لکه د گرفتارۍ وارنټونه اوکاږي یا بیا قرقے نیلامي کوي.
چه په تا راتیته شي نو د مجبورۍ په نبض به ږ ږ چاګوتے کلکے کړي وي ۔ قرض به ځائے له ورځي ۔ دسلو روپو مال په منت به په دیرش خرڅوے ۔ او په بله خبره د فکر کړے د ے چه په پردو نوموټو د قرضے واغشتے نو هغوئ به سحر او ماښام درته حجره کښے ناست وي ۔ غواړي به درنه کوږ یاد سړک غاړے مزکه ۔ یا به نورے ناجائزے مطالبے کوي ۔ اوکه په کښے سوچ او فکر کوے ۔ راخلی به درسپے بیا توپکے ۔ پیشو دخدائے دپاره مړه نۀ نیسي ۔ هغوئ چه داسے په بربنډ لتې ستې وردننه کړو ۔ نو هغوئ به څۀ لیدلی وي ۔
عباس خان دکور نقشه جوړه کړے وه ۔ وے که وس مو راغے نو په دے نقشه به ئے جوړوم ۔ کور پرته وه ۔ دالماس موں راواغشته او رورله ئے ورکړه ۔ ورته ئے وے ورځه ۔ پرغزي سړے دے ۔ کرځي به صلاح کانے به کوي ۔ دهغه دراتلو نه مخکښے چه دے ایساب له ځائے کتلے وي ۔ بنیادونو بانډ سے سړي ارم شو ۔ شنګلے شګه او دبجتو ټرالئ راروانے شوے سیخ سیمټ ئے واغشتل ۔ په درز کار روان شو ۔ خلق حیران وو چه جوړ عباس خان ایساپ مونتے دے ۔ ابادۍ ته خو د ایساب پوله نشته ۔ دبنک د قرض پیسے په ختمید و شوے ۔ نوکار دیړ بے شو ۔ دلته عزیزانو دړیے شروع کړے ۔ چا به وے دکاکاچي دغه زور وو ۔ ساه ئے په سکیندو شوے وه ۔ چا به وے ماماجي کوتے

شمیری - او ترپورانو خو په حجره جماعت په جقه په چغه وُو.چه د ننکیدو نهٔ ئے نو دغه کیدے ولے - تینګ شه - داد دفتر بابو توب نهٔ دے - اوس به اتپے رنګئ - د پلاں نیکه هروکی به خرڅیږی - ځان تیار ساتئ - زر تر زره به د بنړ طوطی شی -

عباس خان چه د خان لالا د حجرے نه کوز مازیګر واپس شو او د کور په دروازه ئے قدم کیښودو - نو یو چغه وه چه کل لاله مبارک شه - د الماس مور مسکئ مسکئ کیده - وے ئے هغه نقشه چه تا جوړه کړے وه - لاله له م ورکړه - ورته م وے سمدستی کار شروع کړه - هغه اسواسئ سړے دے ګرځی به صلاح ګانے به کوی - بیاۀ کار کینی تادی پکار ده - د تیارے غلے سل افتونه وی - دهٔ ورته اووے - بنځے الیاب دِ څهٔ که - هغه م لا له له ورکړه کنه - دهٔ تندی له را واچولے چه ځهٔ چه څه وُو هغه اوشو - درے ورځے م خلقو له په سر کینے مازغه اویشول - نیتجه ئے داوه هغوئ به څهٔ وئ ستړے به څهٔ رنګ نکوم -

عباس خان باندے چتی شوه چه د اخراجاتو کاغذونه ئے اوکتل - نو خبره بسر په سر وه - د دهٔ په تندی د کوښو شمار نهٔ وو - نور الیاب پکار وُو - څهٔ موټر به خرڅ کړم او د بنځے کالی - چه حیا م لاړه نهٔ شی - بنځه اوبچی ئے په یو چغه شو - خلق به څه وائی - ورته ئے وے - موټر مو د خانئ.کالی

مو دسیالئ . چه نوم وانه خلے . دپلار دا تهوپکے طماچے خرڅ کړه . دۀ ته دخپل پلار لوئے لوئے بریت غټ کټ وجود . لوړ ذلګه ځوانی . طماچه په غاړه . تهوپک په اوږه او په لاسو کښے ایلئے راپه زړۀ شوے . ورته وے دا طماچے پلار م په غاړه کړځولی دی او په تهوپک ئے د خیالی د سیند په تهاپوانو کښے دا ایلو ښکارونه کړے دی . ښۀ په غوږ واوره . دپلار دلاس دا نخښے نخښانے ورکولے نۀ شم . ښځے ئے ورسره صلاح اوکړه . چه دوره ایساب نکوه . هغه ورته اووے چه د واپس راکولو به څه چل وی . تاسو سره نوږک نشته . ورته وے . لاله . ماچه دا دومره دکوږو تعویذونو دراے اوکړے هم ستا دپاره . هغه په هیڅ قیمت دپلار کور خرڅولو ته جوړ نۀ دے . چه ساه ئے غرئ له راشی نو په کیسله به په خپله سر بږدی . کله چه تۀ د ایساب خوله واچولے . سمد ستی دیوال دمنځ اوکاږه . خبره به ختمه شی . اوکه په کور پوره نۀ شوه . نو یو کنال دسړک دغاړے مزکه به درکړم . مونږ سره جنت که کور جوړ وے اوکه دوکانونه . هغه ستا خوښه ده . په زړۀ کښے من من غټ شو چه دا خو م دعمر سودا وه .

ښکله جوړه شوه . کوره ئے ورله یوړه . دالماس مور خوبکښے چورلید لے کرځیده . او چه په کرس کرس به ئے اوخندل . نو عباس به وے . چه د قرضونو پلکونه م زړۀ له رابغئ . خو دد بے برخه .

دا اوس د سیالئ شوه - راځي دِ میلمانهٔ - په زور کور کښے که به څوک راغلل - د خفګانه به میندے لونړو غورونه کړی وو - شرمیدے به - دسترګو لګولو شان به ئے نهٔ وو - په سری سیاد لے به تللے راتلے - چه قرضونه به ئے را په زړهٔ شو - څومره چه به ورځے تیریدے - د غمے به دِ ے ورځ په بنګته وو - د بورونو د دردونو نه خو لا پخوا نیغ ګرځیدلے نهٔ شو - د خفګانه ئے کټ اونیوؤ - او چه کله به ئے سترګے پټے کړے - نو په خوب کښے د هتکړو شرنګار او د نیلام د نغارو آوازونو به نیغ په کټ کښے کینو - زړهٔ به ئے درزیدهٔ - او به به ئے او غوختے او اسویلی به ئے اوکړل - اوس خو بنځے نه باچا له بوته - او نه ئے ورته په شنه هتکړه کښے کښلے تعویذ په شین تار په تویٔ کښے اویزانددؤ - چه ډیر بے کوره شو - هسپتال نه یوړ ډاکټران ئے په رنځ پوئے نهٔ شو - ورته ئے وے کورته ئے بوځئ - دعا ورته کوئ - پرهین هیڅ نشته چه څه غواړی هغه ورکوئ - د دوئ د تسلئ دپاره د طاقت ګولئ ورکړے -

د عباس خان بیماری اوږده شوه - خلق ئے تپوس له راتلل - د دفتر ملګری هم راغلل - د تپوس پوښتنے نه پس عباس خان درخواست ورکړو چه زهٔ شوے نهٔ یم - که ما په پنشن کړئ نو ښه به وی - یو پکښے اووے - خدائے پاک به دِ ښهٔ کړی - نا امیدی کفر دے - خو هغے افسر اووے - چه اوس پنشن واخلی - علاج به اوکړی - د ډاکټرانو فیسونه او د دارو قیمتونه

دا ډیرے کرانے خبرے دی او ډیرے پیسے غواړی - پریږدئ چه پهٔ
ژوند ئے په ښه راشی - ملکرو ئے د پنشن کاغذونه تیار کړل.
په دوٗ دوٗ ئے ورله پاس کړل - چه څه ورځے تیریدے - ښه د
ډیر رقم چیکونه ئے ورله ورکړل - چه پیسے ئے اولیدے - تسلّی
ئے اوشوه - مُسکے شو زوئ ته ئے وے موټر راوله - بنک
ته لاړ - قرضه ئے سره د بابتونو خلاصه کړه - دالماس
د ماما قرضه ئے هم ادیله په ادیله ورکړه - ساه په کښے
راغله - په مزکه په سجده پریوت - په مخ ئے لاس راښکهٔ
هر څه ئے چه وئیلی وی - پوهه پرے ٹوک نهٔ شو - و ے
ئے کوځئ به لګه دکیدړ ترماښامه - خو په کوتو به څه ورنشی.
یاد لرئ په دے قبر شکرے نشته - نیت او مراد -

خان لاله ئے تپوس له راغے -

وے ئے عباس خانه! څنګه ئے؟

ورته ئے وے .

خان لاله د الله پاک کار وٗ - ستاسو
دعاوه - ټکټ رم اغشتے وو - خو ښه وه
کفن رم اوشلو .

ورته ئے اووے .

ښه ده داځل خو بچ شوے خو چه کورے
په دے څانګه کوکوشتو او نهٔ وے.

د عباس خان چه د زړهٔ خفګان ختم شو نو ن یو وٗ - صابل.

مخ کښې ئې وینه او تهوکیده - زړهٔ ئې طاقت کښې شو - وې ملبل
حجامت ئې اوکړو - ښځې سپینې استرې کړې واغوستې - دکوره نه
حجرې جماعت ته شو - غیرغمان چه اولید - نو مخې اوبهٔ پرې
توئې شوې - دالماس ماما اووې -

ماخوبې موجبه په درمسال کښې خپې اوکړې
عباس خان ښځې ته اووې -

بنګله جوړه شوه خو نوکری لاړه -

درحمٰن بابا وینا دکانړی کرښه ده هغهٔ لا مخوا ویلی دی.

ـ

چه په خیمه دِ ښخیږی مخ ئې ورک شه
چه دسرو زرو چاړه وی یا خنجر
(رحمٰن بابا)

---

# خوشے خواری ده
# دنیا او دنوسی ده

نیا بے بے - نن رم په زړهٔ راوریږے - جامے درله اخلم.
داسے جامے چه په ژوند به رم درله نیکهٔ بابا هم نهٔ وی اغستے.
چپ کړه حرام چيقه - جامے به اخلے یا به نه - خو په نغاره
خو د ډسنگی کیبنوژل - چه عالمه راشے - نیا بے بے له جامے
اخلم - چه غریبږی هغه نه وریږی - دسنجی ارسلاخان
زویه - ماته خوستا پلار هم معلوم دے - تهٔ خوئے لا زوئے
ئے - د ضاخیلو خټکیه رنګ خر شے - ترورے! نیا بے بے څهٔ
وائی - لکه د چرګے بنے له هم تغیږی او بدے له هم - دبشتیا
وائی بے بے - مورے منږه ډِ وی د سپلمے ډِ وی. مجیدے درله
جامے اخلی - او تهٔ پکښے اینجے پیمانے کوے. دا زمری د شا
وینبتهٔ دی چه څومره رژی هماغه دی.

مجید د بجازی نه بُلها ټکرے راد ننه کړے - مورا و ترور
ته ئے وے - خوښه وئ پکښے - ترورئے یوه ټکره خوښوله.

او مورئے بله - مجید هم په یوه بهتکره کوتے کینولے - چه بنایئے

هم دا به اخلے - دا زما ډیره خوښه ده - وهے ئے ورته - ورک شه

جامے به زه اخلم او اغوندم به ئے زه او خوښه به وی ستا.

دا چرته شوے ده - که تا اغوستے نو بیا خو به خوښه هم ستا

وه - ترور ورته او وے - هلکه په ارام شه - بنه وائی درته

کنه - هر سړے خپله خوښه کوی - چه نا خوښے جامے

ستا په خوښه واخلی - نو ورکوی به ئے بل له - کوئ خپله

خوښه - موږ ځوک په څه کښے نه شمیری - چه ډیباز سړ ئے

که ویخ - ځه ځه لار نیسه - ته لا دومره شوے چه ناخوښه

راباندے په زور اخلے - راشئ خلقه - کلی راباندے په

زور کئ - ستا خوښه نه کوم - له زړه ډیرق پرق شی هم.

هر ځوک خپله خوښه کئ - که د چا زړه چوی - نو چوی دِ کنه.

نیا بے بے - که زه درباندے زور کوم - دا به زما کم عقلتوب

وی - نه - نه - دا به دِ خرتوب وی - ځوک خپله خوښه

په زور زیاتی په چا نه شی - نیا بے بے او ترور ته ئے تیپ

او غبږ - هم هغه خبرے ئے اوکړے کومے چه دوئ کړے وے.

وے ئے هلکه ته خو د سړیتوبه ډیر اوتے ئے - مجید تیپ

ترخ کښے اونیوو اولاړ -

د نیا بے بے دوه لوڼړه وے - یوه لعل پری او بله

جان پری - زوئے ئے هم شته - کور کښے خو یو ځائے دی - خو

کټوئ ځمخئ ئے جدا دی - لوڼړه ئے ډیرے خوښے دی - کله

چې دوئ کورته راشي . ته به وے جوړے اختر دے . ددوئ په مينه محبت کښے هيڅ فرق نهٔ وی او نهٔ دمغوئ په بال بچ کښے. مجيد ئے نو سے دے . کورته ئے په دے راوستے وُو . چې دمغوئ په کلی کښے دڅلورم نه بره سکول نهٔ وُو . دلته خوهائی سکول وو . سبق به اووائی او بل دکور منړے تړے به هم کئ . دلونړو برخے بنړے اختر شوقــدر به اوړی . څکه دا سے ورو کے دکور بل نهٔ وُو . نيا بے بے به ئے دسبق ډير خيال ساته . کاپئ کتابونه به ئے ورله وخت په وخت اغستل . دمليشے جامے اينډل کنډول . داړو درمل واړه ددے کار وُو . مورا وپلار ئے دغمه بے غمه وو .

مشرانوله دغمه خوب نهٔ ورځی . جان پری ته ئے اووے . داجينئ خو ما دمجيد په نامه کړه . مورے چې ته وے . نو خوښه م ده . خورسره م ډ خبره کړے ده . دمغے زما په خبرو کښے څه کار دے . دوه ديرش غاښونه به ورلـه اوشميرم . که په تندی ئے پوئے شوم . نهٔ مورے . سره ددے بيا هم خبره پکار ده .

لعل پری ليپے څو ورځے پس مور بنځه اولين له . چې کور ته راشه هغے سره سودا شوه . رب ډ خيرکړی چې چل څهٔ دے . خاوند سره ئے خبره اوکړه چې مور م بنځه راليږلے ده چې کور ته راشه . نوکه ستا خوښه وی نو لاړه به شم . لاړه شه او شل حُله لاړه شه . شپے ته ايساره نهٔ شے . په ډيرتنګ را

دسړی عزت کمیږی.

دمجید مور خپلے مور کره راغله. راشه درشه نه پس اخوا دیخوا خبرے وشے. آخر سرټے ورته کیښود. چه لورے مجید له م د ځورځه پـه نامه کړے ده. مورے داسے بے صلاح موښ دهلک پـه غوږونو کښے دوکړه راکـړه دینګاټ نـه غږ وُو. هلک دے دسبق به اوځی. هسے نـه چـه پـه ځونړه مشغولا اختـه شی. پلار ځوےٓ راتـه لا پخوا ویـلی وو چـه داهلک اوس لوےٓ شوے دے. نیا تـه ئے اووایـه چه منهُ ئے تروریانو کره لیږی. او نهٔ نور خپلوانو کـره. مورے پـه ځولے کانړے کیږدهٔ. دا هلک به دسبق اوځی. اوکهٔ پلار ئے خبر شو. نوهسے نـه چه بد اونهٔ کـنړی او چـه کله لخـیره فارغ شی نو خبرے د نصیب دی. دافیصلے پـه اسمان کښے کیږی. دے کښے ستـا او زما سوئـمه. که دلتـه ئے نصیب وهـلے شوے وی اوکه بیـــا بل ځائے. مورئے دقهره سـره شوه. اومزکے اسمان له به تـله راتـله. وے ئے چه زهٔ څهٔ وایم. هم هغه به کیږی. تهٔ دومره شوے چه زما پـه فیصله کښے خبرے کـئی. داسے اوچے سترکے م نهٔ دی لیـدلی. زماخـبره دکانړی کرښه ده. بـله به نهٔ شی.

مجیـــد له پاک رب ښه فـکر او ذهن ورکړے وُو. پـه سبق کښے بے شانـه مرنے وو. هر کلاس کښے بـه پـه ښو نمبرو پاس کیدهٔ. لسم ئے پاس کرو. نو کلی تـه پـه دے لاړ چه کالج کښے ئے داخلـه

واغستہ - ثوارلسم ئے پاس کړو نو لاړ کالج ته لاړ - او راغے دتحصیل
په لحړو کښے وکیل شو - اوس ورته خلق مجید خان وائی -

جان پری د کوره څو ورځے پس دسړی دور روندال او نور
دوه کسه مشران راغلل - او ددے د لور تپوس ئے او کړو - د
پلار خوئے رضا وه چه مشر رور م دے - د پلار په ځائے
م دے - هیسے نه چه خفه لاړ شی - بیځئ خاوند ته اووے
چه کورے مور م دا جینئ د مجید په نامه کړے ده - خاوند
ورته اووے - او تے بوتے مه وایه - هغوئ څه خبره تا
یا ما سره کړے ده - څه کوته خلے ئے جوړ کړے دے - څه
جامے چیرے ئے راوړی دی - یا څه خوانهٔ شیرینی - چه
مونږ پوهه شو چه دهغوئ دا خیال دے - ورته ئے وے یه سریه
د مور خبره م ده خفه کولے ئے نهٔ شم - سړی ورته
اووے - دارم مشر رور دے که م ورته انکار اوکړو نو غم بنادی
هرڅه به راسره پریږدی - بیځئ ورته اووے - یوسل ځله
دِ پریږدی - زهٔ مور دوئ سره سمولے نهٔ شم - په دے
ایرو بادو کښے ډیرے تیرے پاتے اوکړے - بیځئ ورته یوځائے
یاد کړے وو - بنهٔ په غوږ و واوره - کهٔ م د څپ د طرفه
حلاله ئے خو د مور وینا بنکته نهٔ شم غورزولے - وے نو بنه
ستا - خو هغوئ راته بنهٔ په ځائے اوویل - چه نهٔ م
ئے اونهٔ دِ رور یم - مونږ د نن نه په مرګ اوشمیرلے - غم
او بنادی پاتے - نهٔ به راځے نهٔ به درځو -

مجید اوس وکیل شوے وو - پلار او زوئے ماسختن په دورئ ناست وُو - مور ورته سر کیښود - چه مور م دخور سره دمجید دپاره خبرہ کړې ده - خاوند خوئے فضل ورارهٔ له ورکوله - خو خور م ورته پښے خوړے وے - چه زهٔ دمور خبره بنکته نهٔ شم غورزولے - په دے دهغوئ په کور کښے خفګان راغے - سرے سره ئے غټ پریکړی خلاصه کړه نو هغه رور ته اووے -

"چه زمونږ کور پرے ورانیږی نو ته خفه کیږه مه -"

رور ئے خفه لاړ او رورولی پاتے شوه - زهٔ خو خپل کور نهٔ ورانوم - هغه به کوم چه څه ستاسو خوښه وی - پلار ئے اووے - مجید بنهٔ تعلیم کړے دے - په خپل بنهٔ اوبد زما او ستا نه بنهٔ پوهیږی - زمونږ څه کار دے چه په زورئوک چا ته په غاړه کوو - زهٔ نهٔ خپل کور ورانوم او نهٔ د دبل کور پاک رب وران کړی - زمایو ارمان وُو چه مجید بنهٔ دیر سبق اووائی او خدائے پاک ئے سړے کړی - اوس لخیره سړے شوے دے - دا د ژوند سودا ده - دا سودا به په خپله کوی. چه بیا دا اونهٔ وائی چه جټ مور او پلار په غضب اړولے یم. چه نه خو ئے پریښودے شم او نهٔ ښاروے دے چه چارشنبے له به ئے بوځم - زمونږ څهٔ کار دے چه ژوند ورله تباه کوو -

مورے - دادا ریښتیا وائی چه د ژوند په فیصلو کښے دیر فکر

پکار دے - نیا بے بے - خو په پردئ زمانه کښې اوسی - دهغې صغه وختونه اوس تېر شوی دی چه په اورنړو سېزنو کښې به ئې ودکړه راکړه کول - مورے نیا بے بے ورو کے لوئے کړم - ډیر کړاؤنه راسره کړی دی - خو دهغې دا مطلب هیڅرے نهٔ دے. چه اوس مونږ خپله خوښه نهٔ شوکولے - ددے قدر او عـزت په خپل ځائے - ځان به ترے لوګے کړم - خو په دے مو ږ نهٔ مجبوره وی چه د ترور لور ته غاړه کیږدم - دا د ژوند ترون دے - او د ژوند ترون عالم په خپله کئ - چه نهٔ خو پرے بیا ستومانه کیږی - او نهٔ بیا څوک کرمه وی - مورے نیا بے بے - خو ضدی ښځه ده چه یوه اووائ بـله کئ نه - ایځ کاږی خو د او چے نه په لمده پریوتے وو - خو طوطا رام هم څه نهٔ منی - که په کښې څه هیر وی نو فتحه به "مرچکے" دركئ - کورونه به ولے ورانیـدل چه د "ښځه" او د "نـه" خبرے په صلاح وے - ترور به ږم لیور ولے خفه کوُو - او چه د پلار ئے رضا وه - نو رور بـه ورسـره ولے کلے اولس پریښودو - مورے نیا بے بے ته اووایـه چه هغوئ لـه د پاک رب ډیر ښکلے زرهٔ پورے ځائے ودکړی چه تول خوشحاله وی - مورے خبره سپینه وایـه - شپ شپ مه کوه - چه طمعه ئے خوره شی - یه - څویـه - سترګے دغوښودی - بیا به نهٔ لګی - زما دِ خوله ماته شی چه مورته به داسے ویُم. څه - مورے مهٔ وایـه - خو عالم ښځے خبرے په خپله کوی - بدے

په استاذی - اولېږه ورله بختورېبو - نیا بې بې له هم او ترور له هم ، قیصه خلاصوه - څهٔ لـه هغوئ تیارهٔ کېنې ساتو چه مخه ئې خپله شي -

بختورېبو چه ورته قیصه اوکړه - نیا بې بې خو اول مخ سر اووهل - بیا ئې تورې خیرې شروع کړې چه زړهٔ ئې سپک شو- ورته وائیه چه

"موربه دِ مخ په کفن کېنې اونهٔ کوری - نهٔ دِ موریم - نهٔ دِ م لور - چه په دې در قدم کېنېنږدې ن لعل پری زما دپاره مړه شوه - بنه به وه چه په ورکوالی دِ م ورله څټ تاؤ کړې وې - چه داورځ خو دِ م نهٔ لیدې -"

زر زر په خپلو خپلوانو اوکوخیدهٔ چه

" یاربه ما واخلې یا لعل پری - هیڅوک به ورله نهٔ غم له ځی او نهٔ بنادئ له - چه دا بورچنړه دغسې شوکوانړې کېنینی - خو هسله به ارمان ورشی"

بختورې ببو له خدائے پاک کار په کوتو ورکړې وو- داورځ خو بنځې د خدایه غواړی - څوک پکېنې کانړی ټکوی او څوک نوکونه جنګئ - په چم کاونو کېنې کله یوې سړې پسې او کله بلې سره - ورځ دوه کېنې کلې څه کئ - کلی خبرشو- بختورې ببو پیا کې جامې واغوستې مسی دنداسه ئې اوکړه - اولاړه جان پری کره - دا خو دبختورې کنکوسو د اوله اګاه کړې وه .. راشه درشه نه پس

راشه درشه نه پس چه لږ ساصورت شوه - نو ورته ئے اووے.
لورے - استاذے چاوړلے نهٔ دے - په خوله ړم نهٔ جوړیږی.
ځکه داڅه ښه خبره نهٔ ده - وے وایه چه څه وی هغه به
وی - د پښتے نه تیښته نشته - وے ئے لعل پری بی بی رالیږلے
یم چه مور ړم تا سره کومه خبره کړے ده - زمونږ خو رضا ده
خو هلک غاړه نهٔ بددی - نو چه هلک خفه دے نو اوښیاران
خپل کور په ځان نهٔ ورانوی - تاسو له د پاک رب ښهٔ
ځائے راوچت کړی چه ټول پرے خوشحاله یئی - هغے هم سر
اوشوکول - ما خو دے سړی سره دونړه هم خفه کړل - دا
ړم د مور کانے دی. چه راباندے ئے اوکړے - په دے کښے ئے
خاوند رانښوت - وے بختورے خبره څهٔ ده - دے ورته
ښه بے بونړو غټ پریکړے قیصه اوکړه - لوګی نه ئے
کوتے کړے او ښځه ئے ښه دړے په دړے واړوله - دشپے
د خوراک شوه - پړونے ئے ورته په سر کړو - وے څه مور
کړه - دا ټول ستا د مور کارونه دی -

بختورے واپسی سوال جواب راوړهٔ - چه څه ئے لیدلی کتلی
وو - یو په یو ئے ورته اووے - تندی له ئے راوا چولے - وے
مورے بے ځایه دِ غرق کړو - مجید ته ئے ټولے خبرے اوکړے
چه څه بختورے وئیلے وے چه د ترور خاوند دِ اوس الټے غلطے
وائی - ځان ساته - د خولے نه کارغان وانه لوزے - پلار دِ
هم په خبره شنوند نهٔ وهی - هسے نه چه څه قیصه ترے

جوړه شي - مورے - لاس ئے خلاص او توره ئے تیره - مقبرے جوړ دده دلاسه دکے دی - کومه کولئ چه ماله تیاره شوے ده - یادلره هغه په بل چا نهٔ سریږی - چه څهٔ په قسمت وی هغه به رارسی - د تبے د تاوه غریږی چه براس ئے کښینی - نو سوړ به شی -

جان پری مورکره په زم زمبولی رادننه شوه - سر ئے شلیدلے وُو - وینو ئے جامے رنګ کړے وے - ټول بدن ئے شین کوشین وُو - روغ ځائے په کښے حرام شه - مور چه اولیدله - په چغو سوروئے ځان دبرمه پریست او هغه کفر ئے اوغږ وُو چه څهٔ ورله په خولے ورتلل - چه لږه ساصورت شوه - نو پئ ئے توده کړل - سوچه غوړی او مرچ ئے پکښے واچول - ورته ئے وے - زر زر توده توده اوسکه - کورکمان ئے غوړو کښے سورکړو او پیسے ئے ورته په سر کیښنو دے - جان پری چه توده شوه نو اوده شوه - ددوکانه ئے ورله د دردونو او زخمونو کولئ راوړے - په لس اتهٔ ورځو کښے ښه شوه - مورته ئے وے -

کهٔ خپله خوښه دِ نهٔ کوئے نو په ما به دالوبے
ولے کیدے -

ورته ئے وے - لورے په ککوئ کښے به ورله اوبه اوڅکم - چه خفه نهٔ شے -

بچو مور پیسے ژړل - کوم چه پوهیدل - پلار سره خوئے د

د ښه او د نه خبرے کولے . خو اوښکے به ئے هر وخت څڅیدلے.
وارۀ ټول په یو وینا وُو . چه مورله بوځه . سرے چه تنګ شو.
نو سره د بچو راغے . جان پری یو یو بچے ځان ته راجوخت کړو.
او په چغو چغو ئے ورته اوژړل . چه زړۀ ئے سپک شو. نو سره
د بچو دکو ټې په کوټه کینے کښیناستہ . دد ے خفکانه ئے خو خپل
خپلوان خبر وو . دوه کسه مشران راغلل . وے چه لوره به
ژورے ته راکاږو . چه خبره هواره شی . ښځه خاوند دی .
شلاوُن خو نهٔ کیږی . سړی ته ئے اووے . ښه ده. وایه
قیصه څۀ ده . خو خبره په لنډو خلاصه وه . هغه ورته
اووے خبره داسے وه .

" زما مشر دور او دوه کسه مشران راغلی وو. زمونږ
جنیئ ئے غوخته . زما خو رضا وه خو دے په ځا پیرنیا راوسل چه دا خو م مورمجید ته
وئیلے ده . په ډک سیند به ځان لاهو کړم . که ښه دِ
ورته اوکړل . ما ورته اووے تاسو مه خفه کیږئ
زمونږ کور پرے دوانیږی . تاسو له دِ خدائے پاک
بل ښه ځائے درکړی ."

هغوئ اووے .

تا پلارکنئ ته سپک اوکتل . زمونږ اوستا تعلق
ختم . چه بختوره راغله . هغے غټ پریکړی اووے
چه هلک په هیڅ رنګ غاره نهٔ ږدی . مونږ خپل کور
نهٔ شو وراندولے . قهر به دے واغستم . چرکچرنه

دِ نهٔ وه کړے - رونړه ہم خفه شو. چه ئے راته سپک
اوکتل - خفګان په دے دے چه بے موجبه ئے په
مونږ وتهه کیښوه - خلق به وائی - خدائے مه کړه
چه په جینئ کښے څه چل دے. که د جان پری مور
خپله خود سری نهٔ کوله نو نهٔ کولی نه ریسلی. د
هر چا به خپله مخه وه"
تاخو دیر نهٔ کرموڅ - خو وهـل ټکول به دِ نهٔ کول - عالم به
کنډکئ خاورے اچوی چه بوئی اونهٔ کړی - چُچې په کښے نهٔ
وهی چه څوک خبر نهٔ وی - هغه هم خبر شی - نو بیا چه څومره
خولے وی هومره خبرے - د چاچا په خولے به برغولی بږ دے.
جان پری دمشرانو په وینا کورته لاړه -
لعل پری حقه حیرانه وه - الله پاک ته په زارو وه چه
دا څه د ناحقے شرق دے. چه کورتـه ئی کړے ورے شوے
خفه په دے وه چه د مورکور پاتے شو - هغه داسے بنیادم دے
چه څهٔ وئی هغه کئ - زړه پښتنه ده - ربنتیا خو به ہم کفن
کښے اونهٔ کوری - ددے خیال په راتلو به ډیره سترے ستړے
ستومانه به وه - ددا سے وخت په انتظار وه چه پلار او
زو ئے طبیعت کښے وی - چه زهٔ ورته سرکیدم - یوه ورځ
دو ړئ ته ناست وو - مور ورته جام کښے اوبه نیولے وے - دوئ
به کله په څه خبره مسکی شو او کله به ئے اوخندل - مور ورته
اووے - چه یوه خبره ہم د ډیرو ورځو په زړهٔ سرخینږی - چه

ئے ورته اوکم اوکنه ۔ وایه مورے چه ډېر نهٔ شې۔ وخت بخت د قبلیدو دے ورته ئے اووے ۔

" مور او پلار خوانږه وی او رونړه خوېند ے هم۔ پلار م د پاک رب اوبخښی ۔ هغه خو نشته ۔ مور م پاتے ده ۔ کهٔ دا بلاکئ ده خو زما ادیکئ ده ۔ او زویه کهٔ تهٔ کاپر ئے خو زما ځیګر ئے ۔ نن دواړو ته دلوئے ځوان جولئ نیسم چه خبره به م منئ ۔"

پلار ورته اووے ۔

" زویه ۔ په مور د نن ینابے بے ، روں او خور راوریلی دی ۔ که داحق وی که ناحق ۔ منو به ئے ۔"

مور ورته اووے

" زویه ۔ مور پاتے شوه خور پاتے شوه ۔ دا ډېره بده خبره ده ۔ داشلاوُن خو زما خوښ نهٔ دے د ډېرو ورځو م داخیال راوچت شوے دے. که مو خوښه وی نو رور کره به لاړه شم او د مجید دپاره به تپوس اوکرم ۔ که هغوئ سنه اوکرل نو په څهٔ طریقه به د تک راتک لار سمه شی ۔ په غریدلو سترګو خو به ئے وینم ۔ خدائے خبر چه مرک د چا ړومبے دے ۔"

مورے پنړوئے په سره وه ۔ اوځه د مخے د دنړا شه ۔ چه دکوڅ او ځے چه کودی قرآن شریف بنکل کرئ ۔ پاتے شوه د پلاں

خبره - نو دهغه کورته نکید لے واخله - پلار ئے موسکے شو. وے ئے چه څه ورځه. چه مور او زوئے رضا ئے - نو د قاضی په کښې څهٔ کار دے.

د زیارت په ورځ د مجید مور لاړه - روندار سره ئے خبره اوکړه - د خوانښے اینګور تربګنی خو ازلی ده. بنه ئے ورته په دے اوکړل چه په څهٔ طریقه خوانښے له د دوک داغ ورکړی - دے ورته اووے - دورسره رم خبره اوکړه چه صلاح یوه شی - ځکه په دے موږی مونږ تیندک خوړلے دے - دور ئے چه کورته راغے - .ښځے ورته اووے - خور د دے خبرے له راغلے وه - ما خو ورته بنه اوکړل - ته څهٔ وے -کوره مور به رم خفه شی او خورهم - دهغوئی خو راسره هسے هم سپکه مړاوے ده - ځکه خو وائم - ستا مور او خور ماسره کوم بنه کړے دی - په نهٔ څه خبره د کنګا په اوبو لمبیدلے یو - چه کوم بد د دوئی د مخه کیږی هغه رارسئی - کئی به خپل کار - هلک لخیره وکیل دے - او بل ستا سکه خورئی دے - ولے ځان تیږ باسے - دهر چا خپل کور دے - اوهر سړے په خپل کور بنهٔ پوهیږی - ورته وے چه څه ښځے چه ستا څرنګ خو بنه ده - خو سرے مځئ به را اوپارے - د دے نه مخکښے زما د دوئی دلاسه کوم سر سور شوے دے - چه پاتے لا اوس -

جان پری چه کورته لاړه - خفه خو وه - خو چل نهٔ ورتهٔ

مورته خوئے غم وتیلے نۀ شو ۔ نوټول قهر به ئے خورته را اوچت شو ۔ په زړۀ کښے وے ګورو به ۔ کړۀ درب ؤو ۔ په دغه شپو ورځو کښے یوه بنه کورنۍ را اوچته شوه ۔ لیدلے کتلے بندیان وو ۔ بنه ئے ورته اوکړل او په کویدن ئے ډیر ارمان اوژړوو ۔ تا به وے چه د لورنده د زوی زګنی ۔ هر چاته ئے په ډیر درناوی اووے ۔ خو نۀ ئے خورته اووے او نه رورته ۔

لعل پری لچه پخنه اوکړه ۔ خپل مینځ کښے صلاح شو ۔ چه خبره به اوس ښکاره کوو ۔ رور ئے هم خبر که چه مخکښے زیارت له مونږ لځیره درځو ۔ دده نه وړاندے مور له به م دکورنۍ مشران راولو ۔ کۀ خدائے پاک ئے په زړۀ د رحم اوبه تو ئے کړی ۔ چه خبره روغے له ورشی ۔ مجید ته مور اووے ۔ چه ستا ژبه خو شیطان ښتلے ده ۔ کوری هیڅ او نۀ وے ۔ که نیا بے بے د پرکئی نو ځان ملامته کوه ۔ وے نۀ مورے ۔ ځان به وړکړم ۔ نو بیا به ئے په پښو پریوځم ۔ بده خبره نۀ ده ۔ نیا م ده کنه ۔

خبرے شروع شوے ۔ نیا بے بے ځکوبه نوشل ۔ چه دا کورنۍ چه څومره خرابے شوے د مجیدی دلاسه ۔ داسیقے چه را لوئے شوے دے ۔ دے بس خپله خوښه کئی ۔ که دۀ زما خبره منلے وے ۔ نو هیڅ به نۀ ؤو ۔ کرکه دلته کئی او اکئی بلځائے احیئ ۔ پوئے په شی لا پوئے نۀ دے ۔ مجید ته ئے وے تۀ څۀ وے ۔ دۀ ټیپ د ترخ نه را اوخکه او چه ئے اولګوؤ ۔ نو هغه خبرے جرګے

داوریدلے - چه کوے ددوئ په مینځ کښے شوے وے. مجید وے
نیا بے بے خو زما په خوښه جاے نهٔ اغشتے . دجامو عمر خو دغه
شپږ اتهٔ میاشتے وی . بیا ریخانګے ریخانګے په ډیران پرتے وی.
نیا بے بے زما دعمر تړون کړئ . زمانه پکښے تپوس نهٔ وو. اوګوره
چه جامے دِ خوښے نهٔ شوے - خو چاله به ئے ورکښے . اوکه زما
..... نو ښاروے دے - چه چارشنبے له به ئے بوځم - دامشران
اوس په پردئ زمانه کښے اوسی - اوس هغه وخت تیر دے - چه
په ورنړو سینډو کښے به میری کول - ما وے راشه یوجها اوکهٔ.
چه څوک ورکړه راکړه کړئ - د مدعیانو نه دِ هم په کښے تپوس
وی - داد عمر سودا ده - نهٔ به خفګان وی نه به کورونه
ورانیږی - خوله مو دِ ماته شی چه مونږ اوواېو چه لکه دینا بے بے
په تنتی پخلا او پړ کړے مروں - سمه سمګئ به ئ . نهٔ به
پښتو کښے دچا پښتئ ماتیږی - ولے به ده وایم نیا بے بے
ئے اوبن د اسویلے اوکړ. وے مجیده . سه

تربیت م کوؤ په رنګ ئے ډوب شوم
شیرینی چه په ځنګل کښے نهٔ وه نهٔ شوه
(علی خان)

# حق ئے حق وی
# ناحق ئے شرق وی

ډسټرک انجینیر فراموز خان ډیر دمزو سړے دے. مجلس آرا
بنده په بند او پیوند په پیوند ترے خوږے خبرے کړی.
سړے وائی چه دے نکیا وی او زۀ ئے اورم. که هر څو مره
وخت تیر شی. نۀ به دے ستومانه شی او نه به ئے د
خبرو خوږ والی کښے څه فرق راشی. زما ورسره کار پیښ
شوے وو. ماوے راشه. اوئے وینه. دفتر ته چه ورغلم
نو هغه وه ناست وو. چه زۀ ئے اولیدم. راپاسید او کلک
ئے راته غاړه ورکړه. تابه وے چه څۀ ډیره موده پس مو لیدۀ کاته
شوے دی. دسلام کلام نه پس چه لږ سا صورت شو. چغے
ئے جوړے کړے چه یا هلکه. بهر په بنچ یو خوږ
درونډ سپین بدیرے ناست وو. راننوت. وے خان څه چل
دے. ماته وائیه. چل هیڅ نشته. میلمه دے چه چائے ورله
راوړی. ورته وے. داخو زما کار دے. زۀ به ئے راوړم. هغه

تہ څہ حاجت دے - دبل دفتر سرے دے - یا بہ اوزگار نۀ وی. یا بہ ئے څۀ کار لہ لیږلے وی - ورتہ وے خان کاکا پہ ارام شہ.
څوک خو بہ راشی - ورتہ ئے وے - ما تہ خدائے پاک ډول رانغاړ کړے دے - پہ ډنګولو کښے هیڅ ننګ نشتہ - هغہ لاړ چاسُولہ.
فراموزخان یو سوړ اسویلے اوکړو او خفہ شان شو. سترګے ئے لوندے شوے. دوہ درے ځلہ ئے اوزبہ وړلے - رومال ئے ورلہ یوړ. لکہ چہ اوچئی ئے -

" وے اللہ بے نیازہ ئے - کاروتہ وارہ ستا دی. څوک پہ تخت کینئ او څوک دتختہ کوز کښے. دے کښے څوک څہ وسیلے نۀ شی ."

ما ورتہ وے خیر دے خبرہ څۀ دہ - وے بس دہ واورہ -

" ددے خان کاکا نوم لښکر خان دے - ددے کلی بنۀ خون دروند دجرګو سرے وو. بنګلے ئے خانی وہ - دحجرے جماعت خاوند وو - هر وخت بہ ورسرہ څلور شپږ کسہ ناست وو - ډوډی مار وو. کنډو رنړو سرہ بہ لاس امداد کوو - فقیر فقراء ترے چرے هم بے نوا نہ ووتلے . بنځے ئے دوہ دی. یو رومبئ دہ خو چہ اولاد ئے اونۀ شو نو بل وادہ ئے اوکۀ. پہ نصیب کښے ئے بچی نۀ وو. نو دوروستئ هم اونۀ شو -

پہ دغہ ورځو کښے یو انقلاب راغے . دے نظریئے

وده اومونته . چه حاکم اعلیٰ الله پاک دے - داټول کائنات
دهغه دی . دهغه لویه ذاته پس مزکے دهغے خلقو
دی چه پکښے کوکښله اوکړونده کړی . ځان پکښے خوله
کړی . نهٔ دارِغرمو ته ګوری . نهٔ دپوما یخنئ
ته . بس په یوه هله وی . دا ډیر بے انتها ظلم
دے چه مټے دِ لاله وهی اونوری دعبدالله وهی .
ددے معاشرے غټ تفاوت دادے چه یو غیرحاضر
مالک ئے په سر مهاوت کړے دے . نهٔ خوښیله
څه مشقت کړی . یوے کړی . نهٔ غاخورے . دمزکے
په پیداوار کښے دهغه هیڅ سترے نشته . ددے نه
به زیات نور ظلم څه وی چه دڅوک دسره نیمه
اخلی . خان خان به ورته وے . ستغے سپور ے
به ئے زغمے . بندیکار به ئے لا تیرے وی .

په حجره جماعت دا خبرے دی . دلچسپی په کښے خلقو
په دے بے کچه واخسته . چه بے ښے بے بدے به دمزکے مالکان
شو . خبره ورته لاس په لاس بنکاریده . دے چالاکو نوو
زلمو خو دا ورځ دخدایه غوښته . وخت بخت برابر شو . د
موقعے په انتظار وُو . کار په کوتو ورغے . خیال ئے داوو .
که وهلے شی که ټکولے شی هم داغریب . که په کښے جګړه یامرګ
راغے . هم دابه دقربانئ ګډوری وی . مونږ به په لوړه ناست
یو . تش په تقریرونو به اور لګوو . که زیاته شی خوحوالات

به ئې - څه پهانسی عمری خونښته - ربښتیا دی چه مشرئې زلمی

وی - تمام ئې واړه لیونے وی -

په کلو کښے ورے ورے جلسے شروع شوے - وے زمونږ

مشران دخدائے ساده وو - په زور ئې ځانله ځاینو پیدا کړے دے.

په قامی جهګړو کښے به دیو مشر ضرورت وو - ځان ځانله

خوږ چا مشری نهٔ شوه کولے چه دهغه په خولے دِ اولس جمع

شی - که په کورنئ کښے څه خفکان پیدا شی - دهغے روغ والے

به راولی - دمیلمنو عذرول به ددهٔ وی - ددهٔ حجره جماعت

پکار وو - نو مشر له ئې ډیره مزکه ورکړه - چه اخراجات ئې

پوره کیږی - که چا ورته وے - چه هلک څه مو اوکړل - دوئ

به غټ پریکړی اووے - څهٔ څه په رزړو کښے اموتها نه

سیئی - چه مشری ئې په لاس شوه - رو رو ئې زور اومونته

د نوک په ځائے ئې څوک وراومنډهٔ - په اس به د مزکے نه تاؤ

شو - چه دا زمانه - نهرونه نهٔ وو - مزکے شړے او چے

تړے وے - پروا څکه چا نهٔ کوله - کله چه فیرنګیانو

رومبے بندوبست کوو - څو بهٔ خان یرول او څه به تحصیلدارانو

د مالیے نذیرول - چه حوالاتونه به ئې اوستا سو به سر وی.

نو ړلے به ئې راوستے - بیانونه به ئې ورکول - چه دا

کوټے دخان دی او مزکه هم - مال محکمے به په ارت مټ تصدیقونه

کول - سوالونه ددوارو قبول شو - په خان هم د معراج شپه

وه او په محکمه مال هم -

خان په ربشتیا خان شو - تاسو اوس اووائیې چه داخان دده ملک دے - دامزکے د دوئ دی - مونږ څوک یو - پښتانه نهٔ یو. دده وطن نه یو - چه د دوئ مزکے شته - زمونږ ولے نشته زمکے وے - زمونږ نه څه ئے په چل او څه ئے په زور اغستے شوے دی - مونږ خدائے پاک دومره کړو - خپل حق غوختے شو - که یو موټے شو - یو مو اتفاق شی - نو یاد لرئ د قام سیلاب ته د خانانو دا کچه بندونه ټینګیدے نهٔ شی.

کلی په کلی اور اولګید - بیا رو رو د ټپو جلسے شروع شوے - دغسے زهرجن تقریرونه به کیدل - هر کلی کښے یو مشر او په ټپه کښے پنځه شپږ مقرر شو - تحصیل او ضلع په کچ تنظیمونه جوړ شو - په غم بنادئ - حجره جماعت کښے به دوه کسه یو ځائے شو - هم دغه مذکور به وُو - چه د سر په کمتوؤ کښے مازغهٔ په جوش شو - مشرانو ئے پوهه شو. چه نهٔ اوس په ځان اړدی - نه په بل - دعملی قدم او چتولو دپاره په منصوبه ئے لاس پورے کهٔ - سور نښان ئے جوړ کهٔ - او د جلسے اعلان اوشو - دهر خوانه زارهٔ ځوانان خیلے جنډے سره راروان وُو - جلسه بنهٔ درنه وه - دوه مخزی دو لکی په کښے په درزغیدل - بے اختیاره کړیدل - او دومره هوائی ډزے اوشوے چه خدائے مه کړه - جوړ دشمن په ملک حمله کړے ده - چه مشر ئے غمبر وی - اخترئے مازیګر وی.

مشرانو جاج واغشت - لوبه ګرمه ده - خلق تیار دی - ډیر

نهٔ دے پکار - هسے نه چه چبړ ی شی - د تیارے غلے سل افتونه

وی - وهلے به شی په توده - توده کښے اعلان اوشو - چه مخے

زیارت له د صدر صیب په کلی کښے به نښان خیژی - دیکوسه

باندے شول - کومے پړے چپلے نګیدلے - د قام داچندے وے.

او تپے په تپے سره د خپلو مشرانو را اورسیدل - د جذباتو ډک

تراخهٔ تراخهٔ تقریرونه اوشول - په کومو کوټو کښے چه تاسو

اوسئ - او کومه مزکه چه تاسو کرئ د نن نه د هغے خاوندان

تاسو ئے - خانانو له به برخے نهٔ ورکوئ - تاسو بے موجبه

لاس مهٔ اچوئ - ترڅو چه دوئ په تاسو بلوسه نهٔ وی

کړے - که چرته داسے موقعه پیښه شوه - نو جواب به مونږ

نه کوئ - بیا مونږ پوهیږو او زمونږ کار - د غسے به سپه

هر زیارت په یو یو کلی کښے نښان ختهٔ - د لښکر خان د بانډے

وار راغے او هلته هم نښان اوچت شو -

لښکر خان د الله په کرو حق حیران وو - د هغهٔ په عقل

فکر کښے د انهٔ راتله چه ګنی دهٔ سره به هم دا لوبه

کیږی - ځکه ددهٔ خپلو کروندګرو سره ډیر ښهٔ روزګار

غم بنادئ کښے به ولاړ وو - د وغ رنځور او د صپتال منږ ترړه

به ئے په راستئ کوله - او چو سره تل لاوندهٔ سوزی - دے

هم د املوکو تول کښے راغے - که په لاره کوځه کښے به ورله

خپل زمیندار په مخه راغے - نو سلام خو پریږده - تندی به

ئے داسے تریو کړے وُو - تا به وے جوړ دهٔ ورله پلار وژلے

دے ۔ ستڑے ئے برگے کڑے وے ۔ دھغوئ داهیں شو چه کنی

دهٔ ورسره چرته خیں بشیگړه کړے ده ۔یوه شپه ئے خپل

ناظر د خلقو نه په غلا ډیر پیټ راغے ۔ ورته ئے وے۔ خان

ډیر نمک ِرم دے خوړلے دے۔ ستا په ډوډو لوئے شوے یُم۔

په دے ِرم نهٔ پیر زو کیږے ۔ چه ددوئ دلاسه خدائے

مهٔ کړه خرجن شے ۔ سات په کړئ داشران ورله جوابونه

رالیږی ۔ چه دے ئے تر اوسه دکلی نه وئے اوښکے نهٔ

دے ۔کهٔ نهٔ ځی ۔یا ئے څه خیال بدل وی نو اووهئ په

یوه چغه ۔ خان دخدائے روئ اومنه ۔ ددے خلقو خیال

ښهٔ نهٔ دے ۔ ډیر په پرده کښے خپل کلی ته لاړ شه ۔ دیو

او د سلو شوے نهٔ ده ۔ خلق مزے اخلی ۔

دهٔ ورته اوو ے ۔

"ما خو څه داسے بد کړے نهٔ دی چه دومره غټه

سزا راکئ ۔

وے خان داسے نهٔ ده داکنگروکان ورته نور خلق اچئ.یو

طرفته تهٔ ئے ۔ بل خوا قام دے ۔ خان مجبوری ده ۔ قام سره

نهٔ شی کولے ۔کنی ستا خپل زمیندار ستا یو ویښتهٔ هم نهٔ

اذاری ۔

ښکر خان په دے تاوٗ تریخوالی ښهٔ فکر اوکهٔ ۔ چه څومره

سامان دهٔ اوړے شو ۔ هغه ئے یوړ ۔ په ډیر افسوس ئے خپل کورته

کلی ته ۔ خپلو پښتو ته په اخری ځل اوکتل ۔ وے ئے بیا خدائے خبر

چه په ژوند به دلته راشم - کور پاتے شو - حجره پاتے شوه. جماعت پاتے شو - خپل د اولس کورته لاړ - د اولسونو کوروننه خو وارهٔ وی - دوئی دغه درے کسان - یوسرے او دوه ښځے - یار دوست به ورله عذر خوائے له راتلل - دغسے شپے ورځے تیریدے - یوه ورځ ورله کښې کسان راغلل - ورته ئے وے. خان - هغوئی که په پردئی زمکه ځان وژنی - نو موږ دومره بے خونده شو چه پخپله مزکه ځان نهٔ وژنو - سری به اوکورو - وسله بند ډیر دی - توقل به پرے اوکړو - یامړ یاموړ - ورته وے - په خانه - نهٔ ځان وژنم - نهٔ تاسو اخر حکومت کښے اوسو - حکومت سره عدالتونه شته - او بیا زور هم شته - داسے خودسرئی ته حکومت هیڅوک نه پریږدی چه په زور زیاتئی دِ دچا نه جائدادونه نیسی - عدالت کښے کیس روان دے - وکیل مِ نیولے دے - فیصله به د ملکیت په ثبوت کیږی - دا بوس بادول نهٔ دی او نه څه ناپرسانه سنار دے چه تش د خولے په دعویٰ به خلق مزکے نیسی - زور په زور ماتیږی - د فیصلے انتظار به کوؤ - چه اوښ په کومه چوکیږی - حکومت پر دے کواتے نهٔ خیرات کئی -

دینکر خان دغسے شپے ورځے تیروے - شته دولت خوځه وکیل واغشت او څهٔ منشی - اوځه د مقدمے په نورو اخراجاتو اولکید - دینکر خان کمتوئی خمخئی له اریان شو - د بنجو کالی ئے یو په یو خرڅ کړل - څه موده خو گذاره پے کیده - بیا دکور

جاے چیرے ۔ لوخی لرګی وار په وار خرځ شو ۔ خو ترکوے ۔ نۀ
خو مقدمه ختمیده ۔ او نۀ څه جوړه جاړه کیده ۔ خبرے نار نهوو
ته اوته ۔ یو وخت به ئے څه زهر ګنده ین کړل ۔ بل وخت له به
په اوبو ګذاره وه ۔ چه د هغے یو وخت درک هم ختم شو ۔
نو بنځو خان ته اووے ۔

چه ځه کنه ۔ یار اشنا نه اوغواړه
ورته وے چه
اوغواړے په خلے ، خورے به ئے په څۀ ۔

وے سه نو څه به کوو ۔ خیمه خو غواړی ۔ دۀ ورته اووے ۔

چه ځم که بهرم څه د تهاتهکی مزدوری
اومونته چه خدائے پاک کاردوان کړی ۔

د بنځو د سترګو نه د اوښکو دارے لاړے ۔ دۀ هم مخ بل خوا
ته که ۔ دکوره بهر اووت ۔ حضرت رحمٰن اوطوطی رحمٰن
دی ابادی کوله ۔ د دے ورغے سلام ئے واچو ۔ هغوئ دکمه
اوچت راپاسیدل ۔ خان ته وار په وار ورترغاړه وتل ۔ خان
تۀ ۔ او مونږ له ۔ مونږ ویخ یو که اودۀ ۔ بالښتونه ئے ورته
کیښودل ۔ چایو سره نور هم ډیر څه راوړل ۔ ګپ شپ ئے
شروع که ۔ خان تندی له راواچولے ۔ ددے دپاسه به
زۀ څه د مزدورئ اوویم ۔ دغسے واپس شو ۔ صباله بیا سحر
وختی راووت ۔ وے چه ویرشی ۔ خو په سرتوره خوندکئ ۔
بل ځائے کارکیده ۔ د سلام نه مخکښے بلچے تهاتهکی ته لاس

کہ - چہ هلکه زهٔ مزدورئ له راغلے یم - دځائے خاوند ئے
په پښو پریوت - وے خان و لے م شرے - زهٔ خوستا دنوکر
مسائی هم نهٔ یم - زما ختے اوتهٔ به کئے - خلق به څهٔ وائی.
یا هلکه مزدوری به زهٔ کوم - شرمیږے به تهٔ - هغه
ورله پتے سل روپئ ورکړے - وے خان تهٔ او مزدوری.روپئ
ئے ورته واپس کړے - زهٔ هسے پیسے نهٔ اخلم او نهٔ سوال
له راغلے یم - او نهٔ م نورخه چل جوړکړے دے. وے ئے
دانهٔ شی کیدے - څادر ئے په اوږه که اولاړ-
نارے نهورے تیریدے - تن بدن وار تروارہ کمزورے
کیده - وخت راغے - کرځید و نه هم پاتے شول - درے څلور
ورځے پرله پسے دخان دکوځے دور تمبے لرے نهٔ شوے
دکوانړیانو فکر شو چه ورخو د دننه نه زغئیں دے.
وے ئے ډبه وو - خوځه په ښکالو پو هے نهٔ شول - یو
ماشوم ئے په دیوال ورواړوو - چه هغه ورلرے که - دوه
ښځے وردننه شوے - درے واړه کمتونو کیئے پراته دی -
سترګے خو غړوی - دخبرو د ژواکه وتلے دی - په ژوند خو
ژوندی دی - خو په مرګ ایساب دی - بے انتها کمزورے شوے
وو - خبره اوکوانړیده - دکندی خلق راجمع شو - چا ورله
بوجئ اوړهٔ - چا تیم غوړی - چا چائے - چا چینی - چا څهٔ
او چا څهٔ دوئ پاک رب د مرګه بچ کړل - اوس خلق پوهـ شو
چه خان به ولے د مزدوری الا باش کوو -

د ډسټرک کونسل چیرمین دکلی ؤو - دوه کسه مشران ورغلل.
د دوی د مستقلے وسیلے په فکر ؤو - که دغه شان مونږ ورله
میاشت په میاشت دکور خرځ ورکوؤ - خو یقین نشته چه دے
به غاړه کیږدی - څکه سوال د عزت نفس دے که دانهٔ وے
نو چه دومره سخته وه - چا نه به ئے سوال کړے وو. معلومه
شوه . چه مرګ ئے منظور ؤو - خو سوال نه -
چیرمین اووے - چه
حاضره به په ډسټرک کونسل کښے نائب
قاصد واخلو - بیا به کورو چه څرنګه بنسهٔ
ځائے ورله پیدا کوؤ -
ورځے شپے تیریدے - لبنګر خان خو به په ظاهره چاسره
بنهٔ په خندا جی جان کوؤ - تندے به ئے روښن روښانه
ؤو - داسے نهٔ ښکاره کوله - چه زما په زړهٔ څه تیریږی.
خو دننه په ائینه سکی ئے کونږے لګیدلے وو - غم ئے زړهٔ
ته اچولے ؤو - په ولاړه ولاړه دوړیدهٔ - رو رو رنځیدهٔ. ذهنی
پریشانو په مخه اغشتے وو - چه څهٔ ؤو - او څه اوشو-
اخر دکټ بندی شو -
یوه ورځ په منډه منډه یو سړے راغے - د عدالت په
وو یا دوکیل - چه خان مبارک شه - د مالکانو په حق کښے
فیصله اوشوه - ټولے قبضے واغشتے شوے - د عدالت دفیصلے
نقل ئے ورکړو - ده بره اسمان ته اوکتل. وے ئے ذوالجلاله

خان کړے دِ وم . خانی دِ رانه واغشته . په مزدورئ لیږے دِ اوګرځولم دنهرو دلاسه پریوتم . نو خلقو خیر خیرات راکه . په دفتر کښې دِ چپړاسی کړم . په څه ګناه به دِ نیولے یم . ربه ته ما معاف کړه . ددے نه دِ سخته نهٔ وی . دبل امتحانه ړم اوساتے . کلیمه ئے درسته کړه . الله ما معاف کړے . سترګے ئے مړاوے شوے . سلګئ ئے اووهله . ساتړے لاړه .

بادشاهان به په یودم کښې ګدایان که
مالیدلے فسادونه دګردون دی
(رحمٰن بابا)

# چه بد کړې . بد به پرې

نوم ئې بدرالدین وو . خپلو‌انو به ورته بدرې وې . نو خلقو به ورته غټ پرېکړی ګنجې وې . په ورکوټوالي ئې په سر کښې سپوږې وُو . اوس خو جوړ شوی دی . درې ځلور سپین تپاکي د سر په تورو ویښتو کښې دلرې نه پرېږي وهي . کله چه بې پامه ټوپۍ د سره کوزه کړي . وائي چه د ګنجي یو رګ زیات وي . نه ئې په سر تارلري او نه ئې په چا کار . ځواني وه . غټ کټ کوټلی وجود ئې وو . نه ئې د اَړ په غرمو ځه کار وو او نه ئې د ډوډۍ په یخنۍ . د علي خان د مېنې به ئې ساتلې . د سحر خو به ئې د سپند تپاپوکانو ته سر له بوتلې . د مې له به ئې جنګئ ته راوستې . د غرمې به ئې سوړ سکړک سره د شملو ډک بټک وار بې وار په سر راواړ وُو . نو تر ماښیګره به لکه د شنان پړسیدلې پروت وو . یېښو سره ئې روزګار وو . په اخترونو هم چرته ښار بازار ته تللې نه وُو .

زمونږ په علاقه کښې منې ډېر دروند وي . ملک ټول

ګنے ګنے لکه ځنګل وی ۔ نو د بره مفروران راکوزیږی ۔ هغوئ
ته دا اسباب ضرورت وی او چه بره چا سره اوسی ۔ هغه ملک هم
غواړی ۔ ځکه دوئ خوئے د مور مروسه نهٔ دی چه کالو سر د
سوک د سره بے تپوسه خوری ۔ د ډیرو په سر ئے اسباب
اغښتے وی ۔ د هغوئ د مرګ په تکل ګرځی ۔ د حیا د خلقو نه
پیسے غواړی چه دومره دومره را اولیږه ۔ ګنی نو بیا به د میلمانهٔ
یو ۔ لوټے وارهٔ تختیځ ۔ جواب ورله اولیږی ۔ که ژوند مو
پکار وی نو رقم به را اولیږے ۔ او که نه نو بیا ورله کټ
راوړئ ۔ د شوکو ټکه مادی هم کئ ۔ دا د دوئ سیزن دے۔
کله چه ګانړو له ګنی مات شی او ځائے په ځائے وتونه اوشی۔
د پناه ځائے ختم شی نو بیا بره خیژی ۔

درے مفروران راکوز شوی وو چه د لرے برے سبه
اوکرځیدل نو د درے په نیت به د بدری جنګئ ته راتلل جنګئ
د سیند غاړے ته نزدے د ځنګل تورو تیرو کښے وه ۔ بدری
سره ئے ګپ شپ شو ۔ دوئ د خبرو نه معلومه کړه چه
سړے په ګوتو راغے ۔ کله به بدری د کوره راوړله او کله به
دوئ پیسے ورکړے ۔ چه چائے پخه کړه ۔ دوډئ پخه کړه۔
بدرے د دوئ په اشنائی په ډیره ښره کښے وو ۔ موسکے موسکے
به کیدهٔ ۔ کلی کښے به هم دروند ګرځیدهٔ ۔ خبرے ئے بل
شان شوے ۔ غټے غټے او پرتے پرتے به ئے کولے ۔ بریت ئے
هم پریښودل ۔ او اوس به ئے جامے د ملیشے اغوستے ۔ خان ته

به ئے بنګته پورته کتل ۔ بریتو بریتو کښے به ئے اوخندل ۔ ګنی چه زړهٔ اوس څوک يم ۔ بے موجبه پیسے شاکنځلے به ئے دخولے نه دورولے چه ددهٔ فلان میدان کړی ۔ لادے هم دومره سړے شو ۔ککرئ کښے به ورله خلق اوبه اوڅښلکی ۔ دکندی خلق حیران وو چه ګنجے دکله نه دومره تورزن شوے دے ۔ هوا پکښے دکوے راغله ۔ خلق دومره اوزګار نهٔ دی چه چاپسے دونه وهی ۔

بدری چه به ددوئ خبرے اوریدلے چه په فلانی کلی کښے مو په نخوس زړه سړے اوولیشت ۔ شل زړهٔ مو د فلانی واغښتے ۔ دسوال جواب سره سم ایساب راواولیږهٔ ۔ دومره یریدونکی څو مونږ نهٔ وُو لیدلی ۔ مرده هغه هلک چه مو تختولے وُو ۔ خدائے شته ۔ دهغهٔ په ژړا به مو زړهٔ اړے اړے شو ۔ بنه وه پلارئے اتیا زره راواولیږلے ۔ دهغه ممه ایکے یو زوئے وو ۔ دلته شوکه هلته شوکه ۔ په دې تیکه مارے دورځے ورځے کارجوړوی ۔ دا منے ډیر بختور دے ۔ حاضره بنهٔ روان دے ۔ د بدری خوله اوبه اوبه شوه چه دا دومره د لکونو خبرے ئے واوریدے ۔ سړی پوهه شو چه بدرے نور دتینګے نهٔ دے ۔ ورته وئے چه مونږ سره ګرځے ۔ پیس به ګرځے ۔ ځه هلکه درے مونږ یو څلودم په کښے ته سیئ ۔ داځهٔ سپیرهٔ کاردے ۔ دخان منځے ساتے ۔ دے تنے ته دګوره او په پاره سوتو راغونږ ولوته ۔ دځان نه هم شرم نهٔ دځی ۔

سنګکال نو دے خان ستا په وجه خلاص دے. مخے له به ئے میلمانهٔ یو. ولے دوی دِ په مړه خوری او موږ به نهر ګوځو. دا خو نهٔ شوه کنه.

بدری ته ئے طماچه په غاړه کړه. توپک ئے ورته په اوږه که. دکارتوسو ډکه ګردنئ ئے د ملانه ګیں چاپیں کړه. ورته ئے وے. پیش قوزه منړه په بړه. رښتیا ده ښځه په کالو نهٔ درنیږی او نر په وسله. اوګوره اسٔپه کینے. د برشه به دِ سری په زلزل وی. چه هغوئ ئے صفت اوکه دهٔ نه هم ځان ورک شو. غوښه ئے اوخوړه خورواٗ ئے اوګوتمله او ورسره روان شو. په شوکو ئے لاس پورے که. ښه ایساب په ګوتو ورغے. نو غټ غټ کارونو ته ئے زړهٔ اوخارختیدهٔ لکه په پیسو مړی کول. سړی تښتول. پیسے غوختل. خو مرګرو ورته اووے چه

" غټ کارته به هله لاس اچے چه په زړهٔ کلک شے. په زړهٔ دِ ځنګل اودریږی. رحم او ترس دِ ختم شی. چه نهٔ دِ بیا په زوړ راځی نهٔ په ځوان. نهٔ په نر او نهٔ په ښځه. هسے نه چه وینے اووینے او په تا سیادلے راشی. خو ځه چه مله دِ زورور دی بیا وهه پردی باغونه."

یوه ورځ لرے لانهٔ ړل. دچارشنبے ورځ وه. خیال ئے داؤو چه په منډئ کینے به ئے ښاروی خرڅ کړی وی. ایساب

به ورسره وي ـ لاس په لاس به ئې ترې واخلو ـ يو سړی دوؤ نه خو ئې واغشتې ـ خو دا بل کلک وو ـ زړ په هغوئي ګران وي چه کتلی ئې په ځان وي ـ لاس ئې ورسره واچوؤ ـ په پرزولو کښې چه د اوربُـز نه تربوزک لرې شو ـ ولې کښېږه! دا ولې؟ وې پيژندې مرکرې ورته آواز اوکړ ـ سر ورله نوارهوه ـ چه داولې ـ دعوې ـ شهادت نه خلاص شي ـ څو نهٔ به ځان له نهٔ کوړې ـ ټوپک ئې ورته راوارووُ ـ ډز ئې ترې اوښکه ـ لکه دچرګوتي ټوپونه ئې اووصل ـ دوه درې ځله خوله وازه وازه کړه ـ څټ ئې يو طرف ته اوږغړيد ـ دمرګ ډير دروند سام وي ـ دبدرې پښې للې کلې شوې ـ تلې نهٔ شو ـ مرکرو ورله دمړي وينه ورکړه ـ چه څښکله ـ ورته ئې وې امبارک شه ـ دا دِ روميې مرګ دې ـ زور چه زورور شي لښې هم بنسکره ورشي ـ

يو هلک په کښې کيا کوله چه دا لوبه ئې اوليدله. ډيرې غلې شو ـ څهٔ ئې کولې نهٔ شو ـ خو کښې دهٔ هم اوپيژند. چه په سړي ئې ډز کوؤ ـ پټ پټ به ئې يو بل ته وې. چه وېـلې شو چه سړې کښې اووليشت ـ بل به وې هلکه کښې ته کوره ـ ويشتو ته کوره ـ درې سړي ورسره نور هم وُو ـ خو څه نابلده وُو ـ دغسې کوسنکو سې خوړ شوې ـ حجره په جماعت خبرې وې ـ دعوئ په کښې اوشوه ـ دې خو مفرورانو سره بره لاړ ـ پوليس کله د ورځې او کله د شپې چاپې وهلې ـ خو

کنجے چرته . هغه خو ځائے ته رسیدلے وو . دکور لوخي لرګی لت کوپړے ئے تهول پورل . بوډئ مورے علی خان کره لاړه . بلدې له به وخت په وخت خبر رسیده چه فلانے پکینے کلکے منلړے تړے وهی . سوال جوابونه به ئے رالیږل . منے به بیا خدائے راولی. څه یو مړے اوخه لس . مایه خدائے پاک درولی . که لاس مو وانهٔ خشت . نو پوهه شی چه په کورونو به مو د بموښو باران وی . ماسره سړی نهٔ دی د پیریانو بچی دی . خوښه مو اوس خپله .

دلاس کوتے یو شان نهٔ دی په سمه اوغر څوک بنهٔ وی او څوک بد . شته دے داسے ملکان چه مفروران ساتی . نوارے ودانے پرے کئی . په اوچتو کتو ګنجے بغیر ددولت نه وخت نه تیریږی . او نه ماجب دومره وی چه ګذاره پرے اوشی .
بلدی د غیرے ته اورسیدل . حجرے ته ورغلل . مرکری ئے هم دلته دیره وو . ملک په خندا خندا دکوره راوانستهٔ . وے شیر کهٔ خط . وے ملک په مونږ دچا لاس پروت دے مونږ دتاوان په ورځ نهٔ یو پیدا . څومره چه ئے پیدا کړے وے ورله ئے ورکړے .

ملک اواز اوکړه .

"هلکه پسهٔ حلاله وه . سړی ستړی
راغلی دی ."

ستړکه ئے اووهله چه داڅوک دے . وے ملک . سړے خدائے

په کوتو راکړې دې . د اودو تورو ځوان دې - دکارسړې دې .
دیو مور چې هم څ نهٔ اړوی - ملک مسکې شو . وې ئې - بنه
دکارسړې دې . بدرئې په په حجره کښې ناست وو - میلمه
له به ئې اوبهٔ ورکړې . چیلم به ئې نیوُو - کټونه به ئې د
نمر نه سوری او د سوری نه نمر ته کول - حجره جارو کول
اوبه داوړل - عرض د حجرې او دکور چه به څو مره کار وو .
دا د بدری وُو - څو ورځې چه تیرې شوې - په سړی ئې
اعتبار راغے - سوزوکی موېږ ته ئې کینو - لږ و ورځو کښې
ډرائیور شو -

یوه ورځ ملک ورته اووے چه

"بدریه ! زوړند ے ډوډئ چرته هم نشته .
لاس پښې به وهے - نو رزق به خورے - اوس
بنګنته هم نهٔ شے تلے - آخر مرګ دِکړے دے . تهٔ
خو مړهم زمونږ ئې اوژوندے هم - چه وی نو
خورے به اوکهٔ نهٔ وی نو مرے به -"

ملک خبره کوه . په کار م یږو لے نهٔ شے . وے بنه ده -
دا د پوډرو پونړئ به واخلے او بنار کښې به فلانی
سړی له ورکړے . خط به ترے راوړے چه مال
رااورسید .

څو په سویمه به ئې پیرے کولے دغه ئې روزګار شو - یو ورځ
ئې ورته اووے چه

" بنار کښې - که په هسپتال، کچهرو په اډو په بازارونو
کښې دِ چرته په موټر یا سوزوکۍ لاس بر شو - نو ښغ
به را رسئ - خو چه کورے دحیا وی لر نو ے وی
چه ورلیږے بیا څوک راځی کنه - "
کله به ئے پوډر رسول او کله به ئے موټر سوزوکے راوستهٔ -
ملک بنه تړه کښے وو - رپورټونه کیس پس په تهانړو کښے اوشول -
پولیس ورته لارےکودرے ساتلے - دهغوئ سری په سپینو
جامو کښے گرځی - د بدری نخښنه پته ئے ورته بنهٔ په گوته
کړے وه - بدرے بنهٔ داډه شوے وُو - یو ورځ کیس شو - پولیس
پرے ډزے اوکړے - نصیب ئے بنهٔ وو - بچ شو او په تیښته
د رات نه غیرے ته واوړید -
منډه دسپی - ښکار ئے دخاوند - عجیبه روزګار ته م لاس
اچولے دے - بدرے په هومبی ځل په خپلو کړو ستومانه شو -
د مفرورانو په اشنا ئے بد اووے - وے ئے - بنده د بنده
رحمٰن دے او بنده د بنده شیطان دے - چاکول چه ماکول -
په کلی کښے م شپے ورځے خوښے نه وے - ماله دعلی خان مینے
او جنګئ بنه وه - په آرام په غزیدلو پښو خوب به م
کوؤ - نهٔ دچا تپوس وو - نه تړی ماته چا وے چه لارے شوګو
بے موجبه مرګ م لا تیرے اوکه - اوس دلته شپے ورځے تیروم
هر وخت مرګ سره چاړه مږم - داڅه ژوند دے - داخو به
د یو زرخرید غلام هم نهٔ وی - څومره ستغے سپوږے وینا کځل

چه زهٔ تیروم - دا دبنیادم د زغملو نهٔ دی - چرس پوډر به بنار ته اوړے دهغے ځائے نه به موټر سوزوکے راتختوے. کهٔ کیس شوے بدریه تهٔ به کیږی ے - د ملک پرے څهٔ. هغهٔ له زما غوندے نور ډیر - د پولیس شوقی پمپک لاتیرے. گرگری ته په هم خیږے - سرے ړم وژلے دے - راځه بدریه پینبے اوکاږه - د دوستئ د ژونده خو به خلاص شے - د دے برامه بنادی ده حرامه -

بدری په ذړهٔ کښے خبره کلکه کړه - د شپے آخری پهار کښے پښے سپکے کړے - ورغر ئے برابره وُو - ککه بے کوډره روان وو. شاته د سړو نه هم یرېدهٔ - ملک چه سحر دکوره راووت دبدری الاباش شو - دے ډیر لرے رسیدلے وُو - بیا ئے هم سړی ورپسے خواره کړل - چرته په کوتو ورنه رغے - وے به ئے ډیر دکار سړے وُو - که چرته په کوتو در رغے بیا به ئے په منت راولے - زور به نهٔ کوئ - روستو کار زما خپل دے -

بدرے په سمه اوغر یوشان روان وو - پښے ئے تنړاکے شوے - د برمه پریوت - شپه به ئے چرته جماعت کښے کوله. کله خو به چا ډوډی ورکړه - کله به نهر وو - تش په اوبو به ئے سات تیرے کوُو - ریزمریز شو - بنه وه - سوات ته اورسید - دیاړی به ئے کوله - چه سا صورت شو - ستومانی ئے اووته - بازار کښے اوگرځید - که چا سم سړی سره نوکر

شوم - چه شپې ورځې م بنې تيرې شي - يو ارتی سره ئے خبره اوکړه - بنه وه سمون ئے اوخوړو - په اخلاص به ئے کار کوؤ - دځان نه به زيات ارم - بنهٔ په رونړ تنـدی او خوشحالئ - د ارتی زړهٔ ته پريوت - اعتبار ئے راغے - مازيگر به ئے اوکړے له ځان سره بوتـهٔ - سامئ ئے تولے او پيټـنـډلے - کله کله به ئے يوا ځے هم ليږهٔ - وصول شوے رقم به ئے پيسه په پيسه ورکړه - کله په کښې کمے زياتے نهٔ وو راغلے - کيدهٔ کيـدهٔ - کلک اعتباری شو - نو دکلے چابيانے ورله هم ورکړے دورځے په دوکان دشپې به ورسـره په بيټک کښې وو - ترنا وخته به يوځائے وو - يو شپه بدری ترے تپوس اوکه - نائيکه تهٔ خو دسوات راتـه نهٔ بنکارے - زبه دِځهٔ نيم ژوبـلے دهٔ -

بدريه ! داخبره تر دا ماچاته کړے نهٔ دهٔ -
چه زهٔ څوک يم - او دلته څرنگ راغلے يُم -
بنه دهٔ واوُره -

" بدريه ! زهٔ دپنجاب يُم - پوله پتی راالله خدائے پاک ډير راکړے دی - بنه اسودگيری وهٔ - ځوانی وهٔ - مستی وهٔ - درے څلور کسه به راسره گرځيدل هغه هم لکه زما په جر مست وو - څه اوسئ کړندئ وهٔ - څه به ورته دوئ کنـګروکان اچول - مزکه څه کوے ماخپله حصه اسمان هم نهٔ ليدهٔ - دالله

کړې وُو - یو موټر زمونږ نه مخکښې روان وو - دکلو سرکو نه خوکچه وی - نو دوړی به په مونږ راتللے. هادنو نه رِم اوغږول چه لار را - هغه هم څوک وُو لار ئے نهٔ راکوله - یا به ئے داخیال وو چه دوړے به بیا په مونږ راځی - یا به په هارونو غصّه ورغلے وه - زهٔ خو ترے مخکښے شوم - اودسړک په مینځ کښے رِم ورته موټر برابرا کړه - ټول راکوز شو - خبرے ترخے شوے - هغوئ سره هم ټوپکے وے - ګواخو نه ئے کول - چه اوکړے نو رشو ما وے راشه - رومبے شه - ګنی نو خیر دِ نشته. رومبے ګذار نړ وی - په دزهلک اونګیدهٔ - خبرهٔ لاس په لاس وه - مړکړی ئے اوتښتیدل - زهٔ هم دکلی نه په دړه شوم - پلاررِم مخورین سړے وو - سوات کښے ئے اشنائی وه - دلته ئے راوستم څو میاشتے خورِم هسے تیرے کړے - تعلق رِم پیدا شو - ګخان دمشغولتیا دپاره د ارت کار شروع کړ - کیس رِم ډیر سخت په دے دے چه نهٔ خوجوړه کئی - دموقع ګواهان ئے خپل دی - نه ایساب اخلی او نهٔ په شهادت کښے کمے زیا تے راولی - دمړی بیان نزعه پے لا تیرے ده - بدبختی رِم داده چه پلار رِم مړ شو - دکیس دپالنے څوک نشته - کهٔ م ځان

ورکۀ ـ پهانسي سمه ده"

خپل غبن د سړي غماز وي ـ خلق هر څه کئ ـ خو هر څه نۀ وائي ـ

بدري وے ـ نائیکه غم مۀ کوه ـ سوات د هم خپل کور دے چه ترځو ژوند ے یم ویښتۀ به د هم ازار نۀ شي. کاروبار ئے ورته سپارلے وو ـ بدرے خو خپله اَن پړ وُو ـ کار به ټول منشي کوو ـ خو دومره یاداشت خدائے پاک ورکړے وُو ـ چه منشي ورسره په حساب کښے چل دتیه نۀ شو کولے ـ سم دم ژوندے کمپیوټر وُو ـ بدري چه دا دومره ایساب اولید. نیت ئے خراب شو ـ هغه زاړۀ چینجي (جراثیم) په کښے اوغونزیدل نائیک ئے څه کار د پاره بنار ته لاړ ـ دۀ ورپسے سمدستي سړے روان کړو ـ په اده چه د ویګن نه کوز شو ـ پولیس ورته ولاړ وو او ئے نیوۀ ـ اوځو ورځے پس ئے د پنجاب پولیس ته حواله کۀ ـ بدرے خو ورله نۀ تاریخ له تلے شو ـ او نۀ ملاقات له ـ په ځان پریدۀ ـ پیسے ئے یو څل دوه وراولیږلے.

اړتي پهانسي شو ـ کاروبار ټول بدري ته پاتے شو. بنه ورځ په ترقئ وو ـ وادۀ ئے اوکړه ـ یو زوئے او یوه لور ئے اوشوه ـ اوس به خلقو بدري ته بدرے خان وے. او چتو خلقو سره ناسته پاسته شوه ـ او بنۀ په درنو خلقو کښے شمار شو ـ وختونه تیریدل ـ زوئے زلمے شو ـ نیازبین وُو ـ په التو غلتو سر شو ـ شرابي کبابي شو ـ وران وران به

گرځیده - که چا به ورته او وے - چه خان هلک بنهٔ نهٔ دے.
او نهٔ ورسره دا یاران دوستان بنهٔ دی - دهٔ به وے - ما ډیرے سختئے پټ ے کړے دی - دهٔ له ذرهٔ نهٔ شم چولے - مال دولت شکر دے ډیر دے - که په ځچغنو ئے الوزوی هم به ختم نهٔ شی.

لوړئے پیغله شوے وه - بنهٔ د عزت خلقو غوخته - خو دا ناجوړه وه - یخنئ وهلے وه - تهٔ خیده بلها دارو ئے اوکړل خو نهٔ یخنی جوړیده او نه تو خے بنهٔ کیدهٔ چه تسټونه ئے اوشول - وے چه کینسر ئے دے - پنډئ لاهور کراچئ ته ته به ئے هوائی جهازونو کښے بوتله راوسته - په خپله خو ورسره تلے نهٔ شو - ځکه یریدهٔ - هسے نه ځوک راسپے لاس اونهٔ وهی - کینسر ډیر نامراده مرض دے - اول خو سرے د دولت خلاص کړی او په آخر کښے د ژوندهٔ - هم دغسے اوشوهٔ.
د دنیا دولت ئے اولګیدهٔ - خو بنه ئے نهٔ شوهٔ - مور او پلار ورسرهٔ په ژوند دکټ شو - د جینئ ځلوینتی لا نهٔ وه پوره - چه مور ورلیے د غمه لاړه - کورګډ وډ شو - بد رے خان همسا په لاس تیت به ګرځیدهٔ - کاروبار ختم شو - دامدن ذریعه پاتے نهٔ شوه - په ذره به ئے شخوند وو - زوئے خو ئے د نشو تماشو اوزګار نهٔ وو - یوه ورځ د غسے موټر کښے روان وو - کلے ئے وو - جینئ د کالجه راتله - دهٔ ترے پرس راښکه هغے چغے کړے - خو بد نصیبه د موټر روستئ پا ئے ته اوغورزیدهٔ.

پایه پرے داوریدہ - کیس پیر کسان په چغه راجمع شو - جینئ دچا ستکرہ سرې لور وہ - دوئ موټر تښتولو - خو رالاندے ئے کړل - تو تے تو تے لبسمے لبسمے شول - حکم اوشو چه پلان ورله په اغستو جامو کینے په کینمه کینے دحدود نه بهرکړئ کنی نو بیائے مرګ تونے دے - بدرے ددوے ملنګ شو. دروزئ پامته دار شو - ښار ته راغے سورې پل سره (قربان ئے دنائے شم) روضے له ئے ځان راورسو - نظر ئے کم شو - په غوږونو درونډ شو - ملا تیټه شوه - دګوځیدو نه پاتے شو - سحر وختی به ئے دسړک په غاړه سپوږمکے ویړه که - روپی دوه به چا ورکړے - دغسے دژوند شپے ورځے تیروے.

بدری په زړه اوخوړه هر څه چه دی - دخپله لاسه دی دزړه په سترګو ئے لیدل چه یو بے ګناه م اووژه - لتے تګو لے ملک له به م دچرسو پوډرو پونړئ اوړے - دښارنه به م موټر سوزوکی راتینتول چه چا راسره بنه کړی وو - په هغه م مخبری اوکړه - دپهانسئ په ګرګری ئے څټ مات شو - ددے دپاره چه دهغه دولت زما شی - دالله ګرفت ډیر سخت دے - اوس ئے نیولے یم - خوانه جانه لودم په کینسر مړه شوه - ددولته خلاص شوم - مورئے دغمه مړه شوه - زوئے م خلقو مړکه - دسواتنه په اغوستو جامو کینے شړونے شوم اوس خیر ته کیناستم - سختے دسختو بترے دی چه مخکینے به څرکیږی.

کړهٔ د الله دی . یوه ورځ د هغې مړی کش روړ زیارت له
راغے . دعا ئے اوکړه په وینړ کړی سپوتکی دهٔ هم روپی دوه
او غورزولے . و ے ملنګ بابا دعا کوه . خو چه په زور زیں
ئے ورته اوکتل . خو مړکړی ته ئے چغه کړه چه خدا ئے ږم دِ
نه غلطوی . جوړ کنجے د ے . دهٔ هم واوریدل . زهٔ هغه
بد نصیبه کنجے یم . ستا سو کنهګار . ما مړکړئ چه زړهٔ ږم سپک
شی . وژنی به دِ خدائے . زمونږ څه کار د ے . دغسے بنه
ئے چه رنځیږ ے . بے اوره رو یتیږ ے . دا د سات سات مړګ
درله ښه د ے چه ضمیں دِ ارام ته نهٔ پریږ دی . ژوندِ په
میږ تون وی . ګند چه دِ خوږهٔ . قاشوغه جیب کښے ګرځوه .

سه

هر څهٔ تخم چه کرے هغه به یوسے

خپله خپله میوه نیسی هر اونه

(رحمٰن بابا)

# ورکه بده

# چه دِ اونیسی ده

د فرمان خان چه به کله سترګے ورغلے - نو لیدل به ئے
چه ګنډ دیښته نه نرے او د تورے نه تیره ګ نکه پل الصراط دے۔
د غضب فرښتو ورله په تخت پنځ غښتئ بنځ کړی دی - او ورته
وائی چه ورځه په - خو چه دے ښکته نظر اوکړی - نو یو
عظیم دوزخ دے چه سرے لمبے ئے تر اسمانه غرغرے کوی -
خلق پکښے سوزی - چغے سورے دی - هائے ناتار دے - زړه
بریخه ئ - دے چه پر قدم کیږدی - نو یوه حیدری چغه اووهی.
د توپ سره دکښه ښکته پروت وی - دکور بندیان ورله
رامنډه کړی - په زم زنبورے کټ ته اوچت کړی - په دا سے
لوئے عذاب اخته شوے دے چه نۀ ترے ځان ساتلے شی.
او نۀ ئے د تیښتے روشته -

فرمان خان په دا سے مرض اخته دے چه نۀ خو ترے مری.
او نۀ دغیږی - پم پرے نګیدلے دے - د ناستے پاستے او تے

دے - ارخونه او دشا تختے ئے لګیدلی دی - تمزا کے او پولی پوئی دے - وینے زوے ترے روانے دی - داسے دردناک عذاب کینے ګیں دے چه نهٔ ورته ټوک کتے شی او نهٔ ورته زړهٔ نیوے شی - د دب کړهٔ دی نیولے دے - دا بیسله خبره ده چه مازغه ئے تیکاوٗ دی - خبرے په عقل وفکر کوی - خوری څښکی هم - خونور د ړق نهٔ دے - زخمونو ئے بوئی کړے دے - خپل اولاد ورته هم نزدے کیدے نهٔ شی - ښځه ئے هر وخت پرے سپرے کانے کئی - خو دغه په خواشکی نهٔ پټیږی - دنورے صفائے هم دغه حال دے - دے خپله دمرګ سوالونه کئی - بال بچ لاس په دُعا دی چه ربه مرګ ئے پرده کړے - خو مرګ په خپله نیته دے - دساه شمار به ئے لا پوره نهٔ وی -

فرمان سره د ورو مور په شور وه چه تربورانو کره مو فریجونه دی - فریزرے - ټی وی کان - دجامو اینځلو مشینونه نور ورکره هم ډیر د سیالئ سامانونه دی - یوزهٔ یم چه جاے اوس هم په تخته سوبارړی او هغه دس تیس د زمانے په خوټ کوانړی کینے اینزم - تهٔ خو نه هندکو پیژنے او نه پښتو - کنی دخفکانه به اوس مړ وے - مونږ له دے نرنځ کهٔ - خر چه دخره کم وی نو غوږ ئے پریکولے دے - دهٔ ورته اووے - چه بیه ښځے په دے کرانه کرانئ کینے ایله خو په مشکله قوت لا یموت کیږی - نو زهٔ داځینونه دکمے راوړم - بیا دانور خلق ئے دکمے راوړی - بنهٔ په ارت مټ ئے اخلی.

ستا لاس چا نیولے دے ۔ د وړو د یو کنډۍ نه دویم نۀ شو ۔ نه

ئے پښپو خپلئ نه بوټهان ۔ اوړے ژمے ۔ دا د پلاسټک کیړټی راکاږی ۔

په نصیب ئے نوے نښته ۔ دغه دکباره راوړو ۔ خلق ئے پیژنی

چه دا ښه دانه دهٔ ۔ نه په عذر او مبارک کښے په هسکو سترګو

کښیناستے شو ۔ نۀ مو د خبرے خوند وی او نۀ رنګ ۔ خلق

راته په کرکه ګوری ۔ د شرمه سترګے لګولے نۀ شو ۔ یوه

جوړه چه په هرے بنادئ کښے خلوم ۔ بله نۀ شوه ۔ خپلوان

راته په سترګو ګوتے منړی ۔ چه نۀ دا په سریټوب

شوه او نۀ ئے بال بچ ۔ چه دا ازلی بدبخته ستا په قسمت

وو ۔ تا له نور څوک نۀ وو ۔ ته نۀ ښځه نۀ ئے کنی تر اوسه پورے

به دِ ینغ روک کړے وے ۔ لکه د مار به ئے سر په کیسه

ایخے وے ۔ خپل خوئ ورته اوښایه ۔ ښۀ د ایساب په ځائے

ناست دے ۔ کۀ ددۀ په ځائے بل څوک وے ۔ ښنګله کښے به

اوسیدۀ ۔ تا ته به خلقو بی بی وے ۔ دنیا به درته پسخیده ۔

سرو سپینو سره به دِ لوبے کولے ۔ خوراک به دِ ښۀ وے ۔

پوشاک به د سریټوب وو ۔ دوۀ کسو به درته په درونه

نظر کتل ۔ خبرو ته به دِ خلقو غوږ ایښودے ۔ اوس خو

درباندے شرمیږو ۔ چا ته ویلے نۀ شو چه دا زمونږ

څۀ دهٔ ۔ خلق وائی کلاس ون افسر دے ۔ سړے سړے نۀ

دے نوم ئے فتح خان دے ۔ د چا په خولو برغولی څوک ایښودے

نۀ شی ۔ دنیا وئ چه ښے ډیرے اخلی ۔ هوښیار دے ۔ ښکاره

کئ ئے نه ۔

فرمان خان سړ به هر وخت لوبه کړمه وه ۔ نه ئے چائے په ارام نهٔ دوډئ په آرام ۔ د ښځې ئے جدا غوښتنے وے ۔ د بالبچ جدا ۔ د هغوئ فیسونه ، کتابونه ، روغ رنځور دارو درمل هر میاشت کښے به خرچ تنخواه سر سمون نه خوړ ۔ نو د یار اشنا نه ئے په قرضو کوتے پورے کړے ۔ د واپس کولو توان چرته ۔ چه نورلس ئے امدن وی اوخرچ ئے شل ۔ نو بیا خو به خوری غوړی ورځے ۔ خوب خندا خرابه شوه ۔ هر وخت به زوړند ځټ ګرځیده ۔ سوچونو فکرونو په مخه واغشت چه کیږی به څهٔ ۔ چیارم لاره نهٔ شی ۔ په سر کښے مازغه په جوش شو ۔ هیڅ رو درک نهُ ئے مونته ۔ نو د ښځې په خبرو ئے فکر شروع کړ ۔

" ذرهٔ کښے وے فرمانه ! چه سړے دلوږے
مری نو مرداره حلاله ده ۔"

فرمان خان په یو داسے محکمه کښے افسر وُو ۔ چه هر وخت به ورسره د خلقو کار پېښیدهٔ ۔ یوه ورځ یو زوړ کوک راغے ۔ پی ۔ اے سره ئے خبره اوکړه ۔ چه دا کار اوکړه ۔ هغه ورته وے چه ستا یاران بدل شوی دی ۔ زمونږ داموجوده خان په دے کهاتو کښے نهٔ دے ۔ څه اخلی نه ۔ مه پرے ځان شرموه او مهٔ پرے مونږ خړوه ۔ خبرے د قانون کئ ۔ ورته وے ۔ یاهلکه داخان دِ دمغے جهانه راغلے دے ۔ اوکه نه ۔

زمونږ د معاشرے لوئے شوے انسان دے . ما له هره لوبه راځي.
په پاتېکو خېژول دومره ګران کار نهٔ دے . ګوره چه خېته لرې.
نو دامه وایه . چه به نهٔ خورې.

څه ورته وایه چه فلانے ملاقات له راغلے دے
پې . اے ورته اووے . خان یو سړے تاسو سره لیدل غواړی
ورته ئے اووے . راځي دِ . د سلام کلام نه پس ئے د خبرے
سر کیښود . ورته ئے وے .

" صیب . دے دفتر کښے زمونږ کارونه پېښېږی
مونږ ستاسو لاسونو ته ناست یو . ستاسو د لاسه
رنګ یو . چه مونږ خورو ګنې ستاسو خېټه نشته.
بال بچ نهٔ لرے . هغوئ به غواړی نه . ماته
پته ده . چه په تنخواه کښے ګذاره په دے ګرانه
ګرانئ کښے بنهٔ ګرانه ده . مارخو نه ئے چه به
خاورو به پائے . د عزت ژوند به هله تیرېږی.
چه جیب کښے پیسے وی . زهٔ ستا دارو . ته زما دارو
سپینه ئے درته وایم چه دا پټ برېنډ یوا ځے تاسره
نهٔ دی . تاسو نه مخکښے هر افسر سره زمونږ مندنې
مات وو . مونږ لکه د اوبنی په دواړو چاموشخوند
نهٔ وهو . څه خورو . څه پرېږدو . پوهېږو . دنیا ده.
زیست روزګار دے . د هر چا حاجتونه دی . بے حاجته
خو یو خدائے دے ."

د فرمان په مزغو د ښځې خبرے یو ځل بیا را اوسوځیدے ـ سړے په کیله کیښود ـ زړهٔ ئے ټینګ نهٔ شو ـ و ے ځه بنه ده ـ فائل راوړه ـ کیس خو پې ـ ا ے داول نه تیارکړے وُو ـ مهر ئے نګولے وو ـ ورته ئے و ے خان دلته دستخط اوکړه ـ زړهٔ مه وهه ماهم انیشل ( iniTal ) کړے دے ـ زهٔ درسره سم ذمه دار یم ـ دستخط له چه ئے قلم اوچت کړهٔ ـ زړهٔ ئے درزیده ـ لاس ئے رپیدل ـ ګونه ئے زیړه شوه ـ دا سړے پوئے شو چه روښے ځل دے ـ دومره ایساب ئے ورله ورکړو چه دومره دهٔ هم و لیدلے نهٔ وو ـ تکه د میاشت د تنخواه دونړه ـ

فرمان خان چه کورته لاړ ـ ایساب ئے ښځے ته وراولیشت ورته ئے و ے ـ

" واخله ـ زما ایمان خو دِ پرے دوړه کړو ـ اخرت م خوار شو ـ تهٔ خوشحاله اوسه ـ ستا دنیا به ښه شی اوس به دسیالئ شے ـ"

ښځے ورته و ے ـ

" په ځان پیریان مه راوله ـ الله غفورالرحیم دے ـ نهٔ دِ دجوارئ داؤ کهٔلے دے ـ نهٔ دِ دچا جیب وهلے دے او نهٔ دِ دچا غلا کړے ده ـ ستا په تش دستخط که یو سړے ډیر څه خاوند شی ـ او تاله په خوشحالئ درکړی ـ نو کوم کفر اوشو ـ په

زور خو دِ ترے نۀ دی اغشتے او نۀ دِ ورله لاس تاؤ
کړے دے - زړۀ مه وهه - مونږ به هم د سختئ نه
په راحت شو- زۀ به هله کرمه وم - چه تا ته
ویم - غلا اوکړه - داکه اوکړه خو مونږ له راوړه-
زړۀ کلک کړه - په ځان دېندے مه راوله - او نۀ
سیاد لئے - مدام د پتاسو باران نۀ وی - زۀ خو
ویم - مسکے شه - چه خوند ئے بنه دے راتله ئے -"
فرمان خان چه بال بچ په خیمه ماړۀ او په تن پټ
او بنځه ئے په چوړلیډ لے جامو کښے اولیده - نو من من غټ
شو - وے ئے داخو اسان کار وو - ما خو بے موجبه ځان ته
تیزندئ اچولے وه - هسے رِم دځانه بنهٔ سرے جوړ کړے وو-
چه زۀ نۀ اخلم - دے بنه سړیتوب خو نفلی روژو ته کینو لے
وم - خپله خو دغسے حال وو - د بال بچ خولے ته رِم لا تیرے
کورے کلک کړے وو - یار دوست دے زیست روزګار دے-خپل
پردی - غم بنادی هم شته - دا بغیر د پیسو نه نۀ کیږی چه
ژوند تیر ئے نو پکار دی چه بنهٔ تیر شی - دوه کسه به دعزت
کسئ - د سوسائټئ د ناستے پاستے جوګه به ئے - هغه دهغه
خبره - مال خپل - قدر په بل - واړۀ به بنهٔ سکولونو کښے
سبق اووائی - راتلونکے ژوند به ئے په سوکالئ وی -
فرمان خان لاس پورے کړ - میاشت کښے به ئے دوه درے کیسه
کول - بنه پوره مامور شو - د ژوند توله مزے په غړیدلو

سترګو اولیدے - کومے چه دغه په خوب کښے هم نهٔ شو لیدلے.
حیات اباد کښے غټ په یو کنال کښے اوچته بنګله جوړه کړه. په کراۓ
ئے ورکړه - بناد کښے د بنګلے په ډول کور جوړ کړ - دوکانونه
ورسره وو. کور کښے په خپله اوسیدهٔ - دوکانونه ئے په کرایه
ورکړل - د خیالی سیند په غاړه یو جریب نه زیات قلاراچاپیره
کړه - کور ئے پکښے جوړ کړو او حجره هم - دلته به جمعه په
جمعه سره د بال بچ راتلهٔ - یاران دوستان به ورسره هم کله
کله په اوړی کښے د سیند د یخو هواګانو مزے اخستو د پاره
راتلل - اتے پاره ټهٔ به وے - رنګ راج وو - موټر ئے
واخستو - بنهٔ جوړ کړے سنبال کړے بهٔ ګرځیده - سوټونه
بنهٔ قیمتی اوډیر وو - هره ورځ به ئے د فتر ته بدل بدل
سوټ کښے تهٔ - د جمعے په ورځ به ئے سپینے جامے د چترالئ
پټئ واسکټ به ئے اچوو - دوه کسو کښے بنهٔ یاد شو -
چې له خلقو داخلے کوے - د فرمان خان هم زړهٔ رااوچت
شو چه څُم چې له - شځے ورته وے - چا عالم نه تپوس
اوکه چه په دے پیسو دِ حج کیږی اوکنه - اوکړنه - هسے
به منړے اووهے - شځے ځان چاته بربنړوے نهٔ شم - بنهٔ
پوهیږم چه کیږی نه - څه مرے ډمه به جماعت جوړ کړی
نهٔ به ئے ثواب اوشی - او نهٔ عذاب او پوئے خلق به راته
حاجی صیب وائی - دا لوړه ده - بنیږه به پریږدم - تسبیح به اړوم

ولے خدائی دہ ۔ کہ پاک رب رِم پہ سمہ لارکړی ۔ مرحوم خوشتہ
پہ تورو خاورو بہ مړینږو ۔ زۀ خو ویُم لبس دے ډیرۀ اوشوہ۔
اخر بہ چرتہ ځی اوکنہ ۔

فرمان خان جی اوکہ ۔ چہ راغے ۔ یارانو بہ ورلہ ډوډئ
کولے چہ د دیں سبنۀ ځایہ راغلے دے۔ دۀ بہ ھم ډیرے
پہ خوند خوند دمکے معظمے اومدینے منورے خبرے بہ
ئے کولے ۔

"چہ پاک رب دِ ورلہ یاران دوستان ټول بوځی ۔ د
روح خوشحالی او ذھنی سکون چہ کوم دلتہ۔ دابل
ځائے چرتہ ۔ دغہ لږہ دہ چہ دچا د مخہ دنیا
ابادہ دہ ۔ چہ چرتہ ھغہ مبارک قدمونہ ایښی
دی ۔ ھغہ اوو ینے ۔ پہ کښے دخدائے پاک کور اووینے
او درسول پاک صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم روضہ۔
وے بہ ئے چہ غارِحرا تہ تلے وم ۔ چرتہ چہ
بہ دوست دخدائے صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم ړومبئ
وحی نازلہ شوے وہ ۔ مولد رسول صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم مواولید۔
اوس خو ھلتہ لائبریری دہ ۔ بنہ بہ وے ۔ کہ ھم ھغہ
ابادی ئے ساتلے وے ۔ د احد دشھیدانو مقبرہ اولیدۀ۔
پہ احد کښے درسول پاک صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم غاښ مبارک شھید
شوے وو ۔ دالږہ دہ چہ جی اوشی ۔ وائی چہ سړے
دگناھونو نہ داسے پاک شی لکہ چہ بچے دمور ہ پاک

پیدا شی؟

فرمان خان بدیره پریښودہ - تسبیح به ئے په ناسته ولاړه اړولے او په حاجی صیب مشهور شو - پی - اے چه به ورله فائل راوړو - وے به - حاجی صیب دستخط کوه

" هلکه ستا نه مجبوریم کنی دا کار اوس ما سره بنهٔ نهٔ ښائی - څه اوکړم چه دِ اوس راوړے دے - "

زړهٔ به ئے ټینګ نهٔ شو - عادته بلا په بسم الله نهٔ ځی - چه غوښے خوری دهغوئ مخوکے کینے وی - دا خو دهٔ یوځل کړے دے که سل ځل جو نه اوکړی کنه - دا ایساب نه څوک مخ نهٔ اړی. دا دیر بد خوند دے - چه یو ځل ئے څوک واخلی په مرګ به ترے خلاصیږی - کارغه ګند خوری - مخوکه سندئ - لو به بنه په خوند روانه وه - اخر کاسه ئے ډکه شوه - دا دسته ګرفت کښے راغے - یو ځل چه سړے اونیسی نو بیا نیول ئے سخت وی -

فرمان خان باندے خاربنی اولګیدهٔ - علاج خوئے د سکن (Skin) سپیشلسټ کوُو - خو چه څومره به ئے دارو کول همره به ورځ په بنکته وو - سړے دو رو ذیاتیدهٔ - ځان به ئے ګره وو - اخر داچه د مجلس کښے د ناستے پاسته نه پاتے شو - کور خو به ئے په توقه ځان ګره وُو - په دفتر کښے ډیر په پیټه - چه څوک پوئے نهٔ شی - خو چرته بابوګان

پوئے شو - اوس به ئے تش په خولے سلام کوؤ - لاس ورکولو نه به ئے ځان ساتله - پی - اے خو دستانے واچولے - خیال ئے دا وو چه جراثیم به فاتل پورے اونخلی - تو اوسه به ئے ډېره کوله - دے پوهه شو چه دفتر واله ځان ساتی - بنځے لږ ډیر خدمت په دے کوؤ هسے نه چه ګډ وډ شی - بیا روزانه دسرو زدو اګئی به چړته وی - لاس به مروړو - وخت به تیر وی - پم داسے نامراده مرض دے چه کوم ځائے اوګرځی صباله هغه تنها کے بوانړ کے وی - او دغه زهریله او به چه چړته ورشی هغه ځائے سخاشی - د فرمان خان تول بدن سخاپمن شوے وو - شکل ئے مسخ شو - دبوټی ډېډوزے به ترے ختے - ډګرځیدو نه پاتے شو - ډاکټر لاعلاجه که - وے کور ته ئے بوځئ - دعا ورته کوئ - نوکری ختمه شوه - نوبنځے ئے دخدمت نه لاس واغشت -

"وے اوس تاکینے څه انجروت دے - مرګ د خدائے پرده کړه - نه مرے او نه رغیږے - په خدمت خو د مونږ له قے راوست -"

دځه ورته سترګے راواړولے - غټے غټے او رنړے رنړے ترے روانے شوے - ډیره بی وسی وه - څه ئے کولے نه شو -

فرمان خو په ژوند ژوندے دے - خو په مرګ ایساب دے - تشه سا پکینے غریږی - په دے وخت کینے دے کوتے خوزوی لکه چه دستخط کئی - او بیا جیب ته هسه کوی چه په کینے څه اچوی -

بنجے ورتہ وے . وخت اخر دے کلمہ شہادت اووایہ . دده شوندٔ
او نهٔ خوزید ے . لکه چه دده هیں وی . د ځنکدن علامے شوے
د پسبنو لاسونه ئے سا اوخته . رقولے نهٔ شوے . سینه ئے خوځیده
خوله به ئے وازه وازه کوله خو سا چرته خته . دغسے دوه
ورځے تیرے شوے . ختم ئے کینو چه دعا اوکړئ چه سا ئے
اوخیژی . د ځنکدن په دے سختو ئے شرمیږو . خپل پردی
ئے تماشے له راځی . غوږ ونو له کوتے اوری . توبے اوکاږی
مرګ دمړی پرده ده یا الله تعٰ مرګ ئے پرده کړے .

ه

د خوشحال ویئیل وهر چاته ښکاره دی
نه دمبنکو بوئ پټیږی نهٔ ده هنګ

(خوشحال بابا)

د

# سحر پهٔ بانګ کښې بله تپه

عجب خان تار اولوستهٔ چه

"مور دِ حق رسید لے دهٔ ۔ صبا مازیګر به ئے

جنازه وی چه وختی رااورسے۔"

ناوخته وُو ۔ دتلو هیڅ درک نهٔ وو خو زړهٔ ئے چرته صبر نهٔ کیدهٔ.

مور بے انتها خوږه وی ۔ دهٔ وے چه

"خدایه وزرے وے چه الوتے وے ۔ خو وزرے چرته

کلیمه ئے درسته کړه ۔ رارَوان شو ۔ وے الله به

څه سوب اوکړی ۔ په زړهٔ کښې دعا ګانے کوی. چه

ربّ غیبی امداد رِم اوکړے چه کلی ته اورسم ۔ د

مور اخری دیدن اوکړم ۔ بیا لیدهٔ کاتهٔ په قیامت

دی ۔ یو بس ته اوخته ۔ بسهٔ تیز روان وو۔ دبس

مزل ئے اوکړه خو څه نقص په کښې راغے . بیخی اودریده

ډرائیور ۔ دبس وس چار اوکړه ۔ بنے کوتے په کښې اووهلے

خو سیمے ئے او نهٔ خوځے۔ سورلو ترے اووے که څه راځی

ورخیږي ځان رسوي - وخت بې وخته دے -

عجب خان د نورو سورلو نه لږ وریشته شو - خیال ئے داؤکه لږه زر سورلی په کوتو راشي - دیو اونے لاندے اودرید چه څه به راروان وُو - دهٔ به ورته لاس نیوَ دهٔ هسه په دے کوله چه په هر طریقه چه کلی ته اورسی. په دے کښے یو موټر راغے - ورته اودرید - ورته ئے وے ځوانه کم حوا - دهٔ ورته قیصه اوکړه -

"چه مور مې مړه ده - کلی ته ځان رسوم"

ورته ئے وے راخیژه - وخت بخت برابر دے - سوال د قبول شوے. موټر ته اوخت - ډرائیور سګرټ اولګوَ - او دهٔ له ئے هم ماچس او سګرټ ورکړ ورته ئے وے سکه یخنی ده - ده سګرټ اولګوَ - اوږ دهٔ اوږ دهٔ کشونه ئے راښکل. څه مینځ چه لاړل - ده ورته وے موټر اودروه. زړهٔ راته ګډ وډ کیږي - هسے نه چه اولتیږ اوکم - او سیټونه دِ خراب شي - دے موسکې شو. او زړهٔ کښے ئے اووے لکه چه کار اوشو - ورته ئے وے - یاملګه سیټونه تا نه بنه نهٔ دی - نا وخته دے ځان رسوو. د آسمان دلوری هم خبره بنهٔ نهٔ ده - څه شیبه پس په سیټ یو طرفته اورغړیده - بیا په ځان پوے نهٔ شو -

په کلی کښے دوَنړو خویندو لارے ته سترګے نیولے وے چه اوس به راشي او اوس - دولس بجے شوے - یو شو. دوه شو. خو د عجب خان پته اونهٔ لګیده - په حجره کښے صلاح دا اوشوه چه جنازه به ایساره کړو - زوئے ئے دے - د ټول عمر ارمان

به وی - پرین دی چه موږ اوویني - بیا به کیلے کئ چه په تاسو کوم پټ پروت وُو - چه لږ ایساریدے نهٔ شوے . رږے شوے - څلور شوے - خو بیا هم پته اونهٔ لګیده - چا به وے تاربه نهٔ وی رسیدلے - چا وے په ځائے به نهٔ وی.
اوچا وے چه دروغ رنځور هم پته نهٔ لګی - وے رب دِ خیر پیښ کړی کهٔ راستلو دی وروستی بس کښے به خامخا راغلے وے خوشته څه چل - چه را اونه رسید - جنازه ئے واغستهٔ مړے دلاتینوخ په دنړا کښے خاورو ته اوسپارهٔ -
ماسختن مانځهٔ نه پس په حجره کښے د عجب خان په نهٔ رارسیدو خبرے شوے -هم هغه بیا دوباره شوے - چه تار نهٔ دے رسیدلے - روغ رنځور د الله د ږدے دے - فیصله ئے دا اوکړه - چه صبا له صبر اوکړو - کیدے شی چه راشی - کنی نوبله ورځ به د شپے درے بجو بس ته فلانے فلانے به ځان اوکاږی چه په وخت ښار ته اورسی چه قیصه څه ده - صباله د خویندو رونړو ئے لارے ته سترګے او چے شوے - غرمه شوه - ماسختن شو - مازیګر شو او ماښام.
خو د عجب خان پته اونهٔ لګیده - اوس د ټولو کلک یقین اوشو - څه مصیبت خامخا دے - په وروستی پار کښے سم درے بجے چه کوم بس داږے نه اوځی - هغلته ئے ځان اورسو.اوکوزمازیګر ښار ته اورسیدل - دیرے ته ورغلل - ښه وه مرګری ئے ناست وو - د سلام کلام نه پس دوی د عجب خان تپوس اوکړو - چه

هغه چرته دے ۔ هغوئی اووے ۔

چه دکلی نه ورلیرے تار راغلے وو چه مور دِ مره ده ۔ ځان را اورسوه ۔ نه خو مو ورته وے چه ایسار شه ۔ ځکه چه مورِ ئے مره وه او نه مو داخوښه وه چه دومره بے وخته کښے چه د سورلئی هڅے درک نهٔ لګی دے دِ روان شی ۔ څه ایساب مو ورلــه ورکړو چه غم دے پکار به ئے شی ۔ اوس په دے پوهه نهٔ یو چه وے نهٔ دِ دررسیدلے ۔

سـړی کلی ته راغلل اومشرانو ســره ئے قوله خبره اوکـړه صلاح په دے اوشوه چه په تهانړه کښے رپورټ اوکړی ۔

کورکښے لوبیه غوغا ګډه شوه ۔ د مور غم په ځائے پاتے شو چه څوک خبریدل ۔ په ښـنه منړه به رارسیدل ۔ عمرازی به ئے کوله چه څومـره خولے هومره خبرے ۔ چا به وے چه عجب خان خو دچا ملاسته غوا چا سولے نهٔ وه ۔ نو بیا په څه ۔ دشمنی ئے هم نشته ۔ کیدے شی چه دایساب دپاره چا بوتلے وی ۔ خو به دے به نه ۔ دغه خلق خوشته‌مند کوری چه پیسے په کوتو ورشی ۔ څوک څه خبر دی ۔ که هغلته ئے چا سره کش کرپ راغلے وی اوکه په محله کښے په تـلوچا لیدلے وی هغه خو داسے سرے نهٔ دے ۔ نو بیا هر څه چه دی ۔ مرګری به ئے خبر وی ۔ خدائے مهٔ کړه ۔ مرګرو ئے څه چل نهٔ وی کړے ۔ ګمان دایمان زیان دے ۔ خدائے

مودِ پرے غاړه نه نیسی - توره بوره هر څه چه دَه. دمرکرو
نه ئے خالی نهٔ دَه - ګوره لکه دکوندو په خیرو کار نهٔ کیږی -
اونهٔ په ناسته - د سړی پته نکول پکار دی - څوک خودِ د
هغه په خپلوانو او یار دوست ییے اوکړځی - اوهلکه فلانی تهٔ
به تهانړے ته لاړ شے - که د زمکے په تل کینے وی کشه.
هم به ئے پولیس راوباسی - په دے صلاح اوشوه -
صباله دوه کسه بنار ته راغلل او نیغ ئے په تهانړه کینے
رپورټ اوکه - پولیس وے چه دشمنی ئے چا سره شته - دوئ
ورته اووے - دشمنی خوئے نشته - هسے شک مو په چا
راځی - وے نه - دلته چا سره اوسی - مرکری ئے څوک دی
پولیس راغے مرکرو نه ئے تپوس پوښتنه اوکړه چه عجب خان
نشے تماشے خو نهٔ کولے چرته چم کاوندو کینے نه راته - ورته
وے نه - بد عملو یا جوارګرو سره خوئے یارانه نهٔ
وه - ورته وے -

دهٔ کینے دا سے هیڅ بد عمل نهٔ وو چه په هغے
ګوته کیښو دے شی -

بنه نو اوس وائے چی عجب خان څه شو - ورته وے کلی نه
ورلسے تار راغلے وو چه مور دِ مړه دَه - ځان رااورسوه - دد ے
ځایه لاړ - ووٌ - ناوخته - نور ترے مونږ خبر نه یو - ځائے
چه ځو تهانړے ته - نور ے خبرے به هلته کوو - د تهانړے
د خبرو نه دِ دب مومن مسلمان اوساتی - غریبانان په تهانړو

اوګرځیدل . شو تے د میکے پرے اوشوے .

عجب خان پوره درے ورځے پس په سول شو . یوه بچه کوټه وه . چونګکئ کښې وو . دے په کښے پروت وُو . په سر ئے نا ترسه ترق وُو . لکه دنیونو ئے کېر پیر کتل . خو په پته هیڅ پوئے نهٔ شو . ګرئ ته ئے خیال شو چه په لاس ئے هم هغه شان وه . تاریخ او ورځ ئے اولیدهٔ . په زړهٔ ئے اوخوړه چه داخو نن دریمه ورځ ده . په سوچونو کښے غرق وو . چه څهٔ وو اوڅهٔ اوشو . په دے کښے ور اوګربید . دوه کسه رادننه شو . مهیب شکلونه ئے وو . لوړ دنګ غټ کټ وجودونه لوئے لوئے بریت . ټوپکے ئے په غاړه وے . اوبرید . چه عجب ئے ځایه کېر شوے . دا منګر نکیر دکومه . کلیمه شهادت او امنت بالله په یو ساه اووے . رپ واغشته . خو زړ ئے ځان کلک که چه څه دکے هغه به وکے . دوئ ورته اووے یریږه مه . تهٔ به اوږ ے شوے ئے او چایوته به دهم زړهٔ کیږی . مخ لاس او وینځه چه سا صورت شے . بهرشه' اوګرځه لینبے ازادے کړه . بهر شو اوګرځید . لینبے ئے ازادے کړے . کېر پیر ئے کتل . وے لیدل چه پیټے دیوالونه ډیر اوچت نهٔ دی . دوی کلک نظر کښے اغشتے وُو . بنه اندازه ئے اولګوله دودئ ئے ورله راوړه . بنه ئے اوخوړه . چائے ورپسے اوڅښکلے وے بنه ستا نوم او دکوم کلی ئے . ورته وے نوم م عجب خان دے . دنوکرئ په سلسله کښے بنار کښے اوسم . خو تاسو راته

اووایې چه زما توره گناه سپینه گنا - کۀ دا ایساب د پاره وی.
نو زۀ ډیر غریب یم اوکه دچا په وینا نو زما دچا سره لانډ بانډے نشته. دا زه کوم ځائے یم او دا کومه علاقه ده. ورته وے
یا خو ډیر اوښیار ئے - یا ډیر ساده - عالم دداسے خلقو نه
دا تپوسونه نه کوی - زمونږ مازغه خراب دی چه درته
اووایو چه دا فلانئ علاقه ده - ورته وے زرۀ مه وهه.
داسے څه خبره نشته - مونږ چه څه غرض له راوستے ئے.
هغه داد ے - یوه توره کوټئ دکوټ خو کورے تپوس اونۀ کړے.
چه دے کښے څه دی - په فلانی ځائے په چوک یو په پښنه
کوډ سرے به ولاړ وی - جاے به ئے څه خیرنے اغوستے وی.
په لاس کښے به ورسره په سور رومال کښے سبزی تړلی وی -
دغه ئے نخښه ده - هغه له به ورشے - دا کوټئ به ورکړے
هغه به درله درے سوه روپئ درکړی - بیا څه په خپله لار
که کلی ته ځے اوکه بل خوا - سبۀ په غوږو واوره - کۀ
څه چالاکی یا هوښیارتیا دِ اوکړه اوکوږ وونږ شوے نو مرگ
دِ توئے دے - ملاقات به بیا په هغه جهان کیږی - زمونږ
دوه کسه به درنه وړاندے روستو روان وی اوکه اونیوے
شوے نو غم به دِ په خپل سر وی - څکه درته وایو چه
پام فکر به ډیر کړے - صبے خو لارے کودرے مو اوارے
کړی دی - څه اوس څمله - صبا له به په پروگرام عمل کوو.
دوئ لاړل ورپسے دشانه جرندہ کړو -

عجب خان زړهٔ کښے اووے چه عجبه بے ځایه ګیر شوے . د کور شپه په کورکیږی نه . چه څهٔ وی هغه به وی . د ښیښے سنه تیښته نشته . دهٔ د کوټے جاج واغشت . یوه کړکئ وه . سیخونه په کښے وو . کوټے پرے اووهلے . زړهٔ ئے اوبه اوښکلے که خیر وی اوبه زی . کړئ ته به ئے سات په سات کتل . چه شپه دم شوه . دهٔ کړکئ اوجړقوله . قدرت ورله دومره توان طاقت ورکړو چه یخ کنده اووتله . بهر شو . په آسمان کښے بریښنا ګړنا درزا وه . ناترسه باران وو . شړق وُو . په چجونو وریدهٔ . پښے ئے راسپکے کړے او لکه دلیونسو بے ګودره په منډه وُو . دکلی خوا نه به ئے ددړه کوله . دسپو غپار چرته وُو . په دے لوئے زول باران کښے بنیادم څه کښے چه هر زنده سر په سوړو ننوتے وو . کړهٔ د خدائے ووچه سترګو لیدل کول دے پوخ سړک ته اورسید . بس ترک ته به ئے لاس نیوهٔ . خو اوبه نهٔ درید . اخر یو ترک اودرید ډرائیور وے چه مسافر دے باران او یخ په ګړکوزو کړے دے . ځان سره به ئے اوخیژوُو . اخر مسلمانی ده . کلینډر اوړن اوکه . راخیژه خوانه . ددهٔ لاړے تیرے شوے . ترک ته اوخوت . زړهٔ ئے پے ډیر زهیر شو . اوچ غټ ځادر ئے ورکه . خبرے ورسره کولے . خو دهٔ حال نهٔ وے . دوئ پوهه شو چه څه مصیبت کښے ګیر دے . دلاس کوتے پوشان نهٔ

وی - هر ځائے تول بد نهٔ وی - بنه هم شته - ځکه خو دنیا
اباده ده - چه خپل مقام ته اورسیدل - نو دچاپو دډوډئ
بنه دارمدار ئے اوکړ - پیسے ئے ورله ورکولے چه دا به دِ
دلاره خرچ شی - خو ده ورته وے - نه - پیسے راسره
دی - کنکس یم - عقل فکر م کار نهٔ کوی - چرته بل ځوا
لاړ نهٔ شم - کلینډر اډے ته بوته - فلائنګ کوچ کښے ئے
کینو - تکټ ئے ورله واغشت. ورته ئے وے ځه دالله په امان.

عجب خان کلی ته اورسید - نهٔ سا صورت وُو او نهٔ
لا دمه چه مشرانو په ستغو سپورو شروع اوکړه - کشرانو
ورته وے -

لاله ! دا سے خو خوک نهٔ کئی -

خویندو ئے په چغو چغو خان د برمه پریست - چه مور م ستا
ددیدن ارمانی دګور خواله لاړه - په کانګوره کښے به ئے وے
چه عجب راځی - لاله داخو دِ خپله مور وه - یا دیده دِ نه
وے
اوس په تالا میدان راغے - خلق به خندا وائی - هغه زړه سوانده
سانده په واز کومی اووے - تا به وے چه دوئ اوس د
مور دکټ سر ته ناستے دی - اومور ئے مړه پرته ده - په
چغو چغو ئے نور ئے هم په چغو کړل - کله خو به پر ے
سیاد لئے راغلے اوازونه ئے کیناستل -

عجب خان دمور قبر له لاړ - هغلته ئے هغه لوځے پوځے
اوکړے چه ولاړ سړی ئے ځان سره په سلګو کړل - خویو

کس داسے هم وُ - چه ورته ئے وے - مړده په تیر وار - اوس
خوندا نهٔ کئ - که دومره په موږ مڼن وے - په وخت به راغلے
وے - تار خوئے ورته په وخت وهلے وو - په اخره دِ
مینه راوا غشته - اوبهٔ دورخه تیرے دی - خلق دهوکه کوے.
خو عجب خان داسے چپ وُو - تا به وے - چه دا مسلمان جوړے
کنک دے - دخولے نه لام کلام نهٔ خته - غټے غټے بر غے
غړولے - په خولے ئے هیڅ نهٔ وے - دارام کولئ ئے اوخوړ
بنه وه تر سحره بے غمه پروت وو - دکور خلقو نهٔ راویخه
وُو - وے پرین دئ چه ستومانی ئے اوځی - په خپل سمی
چه پاسید - وخت تیر وو - مونځ ئے قضا اوکه -
سحر وختی په چایو بیا هم هغه خبرے وے. ورته وے
اوس حو سا صورت شوے چرته وے - ربښتیا ربښتیا وایه. چه
حقیقت څه دے - مونږ له خو دِ زاره اوچوله - ته بنه
بے غمه ئے. چه په ښار کښے یار دوست سره او دخپلو خپلوانو
کلو کښے - چه پته دِ اونهٔ لګیده نو په تهانړه کښے مو
رپورټ درج که - چه عجب خان چرته دے - خدائے مه کړه
که چا وژلے دے -
پولیس ددشمنئ تربګنئ پوښتنے اوکړے - مونږ ورته
اوو مے -
چه زمونږ چا سره دشمنی نشته -
بیا ستا ملګرو له ورغلل - هغوئ ئے دتپوسونو په غرض

تهانړے له بوتلل ۔ تندی له ئے راواچولے ۔ پیالئ ئے د
لاسه پریوته ۔ اوچت پاسید ۔ وے بے ځایه غرق شوم۔
هغوئ ماله پیسے هم راکړے وے ۔ چه غم دے ۔ پکار به
دِ شی ۔ یاالله ربه ۔ داځه امتحان دے ۔ غم دغمه
نهٔ شرمیږی ځکه خو جوړے جوړے راځی ۔

عجب خان سمدستی په کلی کښے دچانه سورلی اوغوښته
دوه کسه ورسره شو ۔ اوهغه سړے هم چه چا رپورټ
کړے وُو ۔ نیغ تهانړے ته لاړل ۔ پولیس ته ئے ټوله
قیصه بیان کړه ۔

اول خو دهغوئ شک راغے چه څه لوبه ئے جوړه کړے
ده خو چه خبره د

مور د مرګ او تار راغله

نو دو ئے شک بدل شو ۔ مرګری ئے راپیښو دل ۔
خو هغوئ ئے په تهانړو ګرځولی وو ۔ یخه شوے دمیکے
پړے شوے وے ۔ لکه هرچا پړے خپله خوا یخه کړے وه۔
نو دپیښ ګلو نه اوتی وو ۔ دارو درمل او بنهٔ خوراک ئے
ورته ورکړه ۔ خدائے پاک ورله صحت ورکړو ۔ دوی پړے
قرآن په سر جرګے اوکړے ۔

چه هرڅه د الله د دړے دی ۔

د رب احسان وو ۔ هغوی اومنله ۔ ورته ئے وے ۔ هندو

دیار دپارہ غوښے خوړلے دی - عجبه ستا ګناه نهٔ ده-

پولیس ددهٔ د بیان په رنړا کښے ستمیشنونه ، اډے اوچوکوئ په سپینه جامه کښے کلک په نظر ګشتی وو - اخر کامیاب شول- یو سړے ئے اونیوهٔ -

بله ورځ په اخبار کښے غټه سرخی وه چه یو ډیر اوچت سړے د اګنده کاروبار کښې - نوم ئے په دے پټ ساتو چه دګوتو اوندځی -

٥

اوس دخلقو پیژندلو کښے تیر وځم
دلته هر سړی وهلے تربوزک دے

(راباسین یوسفزے)

# یو آزار

# د زرو بدو پلار

---

رامت خان بابا د حاجي صیب د ترنګزو قربان ئے د ناے شم مرید وُو . اوس خوئے عمر پیښا ښهے دے . خو بیا هم چه چرته ورسره د حاجي صیب خبرے شروع کئے . نو په ډیر خوند خوند به درته د هغوئ د کرامتونو قیصے رایادیبږي . وے به ئے کرامات د اولیاؤ حق دے . کني نو ته فکر کوه .

"په درے وال یو بندی ټوپک به مو د ډیر ننګیانو
فوجیان ګوره به وو اوکه ګورکه . په یوه چغه به
مو په سیکهو ډیرئ اودرول ."

زهٔ چه کله د جمعے په ورځ کلی ته لاړ شم . نو رامت خان بابا سلام له خامخا ځم . دے زمونږ نزدے خپل دے نو کور ورسره د نغری په غاړه ناست یم .

د رامت خان بابا یو زوئے دے . د ډیرے مینے ورله نوم جنت ګل

ایښي دے ـ په کلي کښې ورته خلق جنتي وائي ـ ډیر چالاک او خبر بوټی
دے ـ په یو ساه ټکیا وی ورانه جرنده ده ـ وار چا له نه ورکوی ـ
ډیر سبق خوځنه دِ وشیلے ـ ایله اتم پاس دے ـ په دغے ورځو
کښې به فارسی مډلونه وُو ـ جونیر ، سینیر به خلقو وے ـ
په کلهم تحصیل کښې یو هائی سکول وو چه مغے ته به داوچتو
خلقو زامن تلل نور سبق دغریبو دوس کارنهٔ وُو ـ

جنتي دبجلئ په محکمه کښې نوکر شو ـ اسسټنټ لائن مین
بلټ به ئے اچولے وو ـ پوړئ به ئے په اوږه وه ـ ښغ به
ګرځیدو ـ دستنې په سر به ئکه دبیز اوچت ناست وُو ـ د
اوچے خان نهٔ وَو ـ نو شرمیدهٔ نه ـ څهٔ موده کښې ئے دبجلئ
کار ازده کړ نو چه دچا به بجلی خرابه شوه ـ دهٔ به سمو له
کهٔ به پنکھے وو ـ که باتئ اوکه نور څه فتنګ ـ دهٔ یخ اوګرم
تارونه اوپیژندل ـ د جامے کپړے اود مخ دکاسے درنګ رونق
نه معلومیده چه سړے په مزه کښې دے ـ

بابا نه م یو ځل تپوس اوکه ـ چه جنت ګل م اونهٔ لید ـ
یو سوړ اوډډ اسویلے ئے اوکه ـ راته ئے وے ـ چه کله ئے حرامو
ته لاس اچولے دے ـ نو ورله م مخه ورکړه ـ ځکه کودرے کهوئ
څمڅئ به ئے هم کله کله راوړه ـ زمونږ حلاله روزی ئے حرامه
کړه ـ ماوئے په آخر به درب څهٔ جواب کوم ـ ډیرے سختئ او
خوارئ موکړی دی هغه ئے هر څه پیر سیند لاهوکول ـ

په دے کښې چاچی رااوداننګل چه بابا دِ اوس بوډا شوے

دے ۔ فکر ئے دومرہ نۂ رسی ۔ خدائے پاک دِ نۂ کړی ۔ څه د غیبو عالمو سورے راته ښکاری ۔ کټ کښے اودۂ وی ۔ چغے بو ړے کړی ۔ د کته راپریوځی ۔ خولے خولے وی ۔ سائے په سکیندو وی ۔ توبے اوکاږی ۔ چه تپوس ترے اوکړم چه یه سرپه په تا څۂ چل دے ۔ کنګ شی ۔ حال نه وائی ۔ جنت ګل بنه وُو ۔ ځوان زلمے دے ۔ هغه ئے هم دځانه لرے کړ ۔ ددۂ په بے وارۂ چغو به له خوبه پاسیدۂ ۔ کټ ته به ئے اوچتولے شو ۔ زۂ به دِ مات ګوډ وجود زور څۂ کولے شم ۔

ورارہ ۔ دا حال ما ترننه چاته نۂ دے وئیلے چه زۂ خوب کښے چغے ولے وهم او دکټه ولے پریوځم ۔

زما چه سترګے پټے شی ۔ خوب وینم چه عظیم دوزخ دے ۔ تاترینه کنده ده ۔ لوئے لوئے غرغرے ترے راخیژی ۔ جنت ګل په دے لمبو کښے کله اوچت او کله ښکته په سانهو وی ۔ څرنګ چه ماشومان د دروزے په بچو کښے دګورګورو هګوکی په چورلندو کړے وی ۔ الاواد خوبن وی ۔ چه ددۂ ناترسه چغے سورے په دغه اور کښے اورم ۔ نو ناساپه چغے م دخولے اوځی ۔ ځان ټینګ نۂ کړے شم او د توپ سره د کته ښکته پروت یم ۔ کله چه اودۂ شم ۔ داغوټے په ما راځی ۔ خوب خندا زابانده حرامه شوے ده ۔ او چاچی دِ وائی چه لکه دپیریانو علامه ده ۔"

ورارۀ - په زړۀ م حاجي صيب راوريد - هغوئ خوځيات نۀ دی خو روضه خوئے شته کنه - مجاهد دے - غازی دے - لوئے ولی دخدائے دے . د عقيدت له کبله مونږ مريدانو ته ژوندے ښکاری - ځوانی نشته - بغير د مرګری ګرانه ده - بنه وه مړګړے پيدا شو . تک راتک اسانتيا کانے ډيرے دی - لارے شته . موټر شته . داتهسن سوزوکی شته - ښځوا خو به د حاجی خوږ ے دوړئ ښخے کړے . د ښادر پيسکے پورے به مو غوښه کړے ورغر به مو برابره وو - دلدار کړهی سينده به دچپو به بيړئ دخيالی سيند نه صريح مرونزو ته چورے وتو اودمندېزو اوميرزو دانړے ژور به مو واغشت - شپه به مو سيکهوډيرئ کښے اوکړه چه دصبا ستورے به اوځليد - مونږ به جوپے سره روان شو - خپے به مو تنړاکے شوے او به پړسيدے . شوارون کښے خو به د رق نۀ وو - اوس خو خبره اسانه ده . سحر روان شو او دغه دے بيا به اور سے - نه په ډيرے شپے شه . اونه بل ځائے - د زيارت په ورځ وختی روان شو - لوړمازيګر اورسيدو - دحاجی صيب د روضے په ليدو م سترګے ښخے شوے هغه بورجلے اودرشلے چه م په غړيدلو اوليدے - ستيں وختونه م په زړۀ او په مزغو په تيزئ تيريدل . هم خفه هم خوشحاله . خفه په دے شوم . چه د حاجی صيب هغه وختونه رایاد شول او خوشحاله په دے - چه په ژوند م يو ځل بيا په غړيدلو سترګو هغه ځايونه اوليدل - چه حاجی صيب په مبارک قد مونه

الینبی وو . لاس مِ اوچت که او د رب العزت مِ سوال اوکه . چه
د به زما کرمه اسانه کړه
د جمعې شپه وه . اوده شوم . خوب کښې رابانده بابا جی حضور شو
د مخ ئے نورانی شغلے ختے . هم هغه انداز کښې ئے خبره اوکړه
چه څه رنګ به ئے ماته په ژوند کوله . راته ئے وے .
" رحمت خانه خدائے به خیر کړی . دا زوئے دځانه
جدا که . دهغه رزق ستا سره نهٔ دے . هسې نه چه
ستا اخره خاتمه خرابه شی . که توبه ئے اوښکله
نو الله غفور الرحیم دے . کیدے شی چه رحم پے
اوکړی . "
وینښ شوم . توبے مِ اوخکلے . او الله ته په سجده پریوتم . کلی
ته چه راغلم . جنت ګل ته مِ کړه په سر کړه . چاچی دِ
اینے ناسته ده . ورته مِ اووے . که جنت ګل چرته څه شے
راوړۀ که پیسے وی اوکه د خوراک . دا درته نهٔ ویم چه ته
په ما په سپین سرطلاق ئے . خو ښهٔ په غوږو واوره . که دا ترے
واغستل نو تپوس ته به نهٔ ایساریږ ے . ښځوانی ته به
کو تے کوے . اوځے به ورسره . چه په دے کور کښې دِ بیا
او نهٔ وینم .
ورارهٔ چه کله جنت ګل د کوره تلے دے او دهغهٔ دلاس شے
مو په ځان حرام کړے دے . نو هغه خوبونه اوس نهٔ وینم .
نهٔ په خوب کښې چغے وهم او نهٔ د کټه پریوځم . ستړګو کښې غټے

غټیږی او رنړیږی ۔ وے ئے چه ماخو وے چه دے به د جنت
ګل وی ۔ خو دۀ په خپل عمل ځان د دوزخ ګل کړ ۔

د رامت خان بابا خبرے چه ږم واوریدے ۔ زړۀ کښے م تلوسه
شوه چه جنتے اووینه چه څه ته ئے کار وئیلے دے ۔ یو خو
لږے بدل شوے وو ۔ نو د ګلی نه په کلړه تلے وو ۔ بل زما
نا اوزګارتیا وه ۔ ورځے ترمینځه ډیرے اوشوے ۔ زما خبره
هم د مزغو نه اوتے وه ۔ څه موده پس کلی ته راغلم ۔ بابا
له ورغلم ۔ په خبرو کښے بیا د جنت ګل خبره شوه ۔ راته
ئے وے خبرئے جنت ګل د مرګه بچ شوے دے ۔ د بجلئی د ستنے
نه راغورزیدلے دے ۔ په هسپتال کښے ترے بنی پښه پریکړے
ده ۔ نوکری ئے ختمه شوے ده ۔ خو زۀ ئے هم په دے نوکرئ
خوشحاله یم ۔ چه خدائے پاک ترے خلاص کړ ۔ هم په دے
چه په ډانګو دوګرځی ۔ اوریدلی ږم دی چه ډیره ئے پریښے ده ۔
جماعت له مانځه له ځی ۔ توبے اوکاږی ۔ الله غفور الرحیم
دے ۔ رب دِ توبه قبوله کړی او رحم دِ اوکړی ۔ د هرچا
ډوره جدا ده ۔ خو اولاد د زړۀ غوښے وی چه زړۀ خوږیږی
د ډنډو سترګو هم اوښکے ځی ۔ بابا ته ورته هم دعا کوه ۔
دوارۀ ولے به نۀ کوم ۔ جنت ګل خو ږم د دوزخ په اور به
روتیدو نۀ پیرزو کیږی ۔ الله دِ اخر خاتمه به ایمان کړی ۔
دواره ته ئے هم اووینه ۔ ورته وایه به صدق توبه اوکاږه ۔
ډیر څه ئے کړی دی ۔ د الله پاک نه دِ د خپلو کړو معافی

او غواړی ۔

زړهٔ مې ډېر زهیر شو ۔ نیغ پا سیدم ۔ جنتی د سړک په غاړهٔ

د یو کنال په اړخ کښې بنګلے کور جوړ کړے وو ۔ کښتی مې اوکړه

ښه وه کور وو ۔ رااووت ۔ خو وو په ډانګورو ۔ طبیعت مې

ډېر خرجن شو چه مې اولید ۔ کاروبنه دالله دی ۔ څوک پکښې

څه کولے نهٔ شی ۔ کور ته ئے بوتلم ۔ څلورکمرے ۔ لوبه

برانډه ۔ اټیچ باتهونه ۔ کچن ۔ ګودام ۔ داټول لنټری ۔ د بور

په کوټی موټر ښکیدلے وو ۔ فریج فریزر ۔ د جامو اینځلو

مشین ۔ ټی وی ۔ وی سی آر ۔ په هره کمره کښې هیټر ۔ کچن

کښې دوه ۔ یو غټ هیټر په تنور کښې ۔ ددنیا د ژیست او د

آرام څومره چه څه کیدے شی ۔ ده سره دی ۔

رامت خان بابا هم هغه کچه کور کښې اوسی ۔ په کوټه

ئے د بکیانړه کاډهٔ واړهٔ لهری پراته دی ۔ د غوړاسکی سرباری

دکوټے په مینځ کښې ستن او نغرے ۔ چاچی سپیاکے اوپتانړی

بله ئی ۔ د لوګو د لاسه کوټه توره او د تیلو د ډیوے دلاسه

سپیږے توره او تور غوړلوګی دکبله خراشکی کښې توروالے

غورځئی ۔ ساه ئے په سکیدو وی او لکه دده مریضان بنکاری۔

سره دده خوشحاله دی ۔ جنتی خوږے ډېرے جرګے اوکړے

چه راځئی چه د ژوند په مزو پوئے شئی ۔ خو هغوئی یو

خدائے یاد کړے دے چه دریه نهٔ شو ۔

جنت ګله ۔ هر څه مې اولیدل ۔ کول به دِ څه ۔ استهنټ لائن مین

ته ګوره او دې نشو تماشو ته ګوره - داخو هسې نهٔ کیږي - یا
ساده سړیه تهٔ خو په اُړ سپړ نه ئې - غوږ شه چه قیصه
درته اوکړم -

" یاره باره هسې هم تیره ده - دبجلئ په محکمه
کښې اسسټنټ لائن مین ئې واغشتم - نوکری نهٔ په
قابلیت شوې ده - نهٔ په سفارش - دسټیټ بنک
دستخط شوی کاغذونه ئې غوختل هغه م ورلــه
یوړل - زړهٔ ئې ټینګ نهٔ شو - زما کار اوشو - دهغه
وخت نه م قسم اوخوړ چه زهٔ به موهم خوښ شم
بنیاد ئې کوږ کیښود - نو که دیوال تر اسمانــه
رسی کنــه - کوږ به وی - نیغ به نهٔ شی - دا
پلاس چه څرنګ تارونه تاوئ - دغسې کنزیومرهم
تاوئ - تیـل ترې اوکاږی - دخپله کوره م پنځــه
شپږ و کورونو ته کچه تارونه ورکړل - چانه به
پنځوس اغشتے او چانه شــل - د میټر بندولو چل
چه به م چاته اوخو - نو زما کار به اوشو - په
ابتدا کښې خو م میټر به ریورس کوو - لکه چــه
یو نښے کمے اوبنائ - نو برخه به م خوږه وه - خو
دا کار م بیا پریښود - سیږے چه به چا لګولے - هغوئ
به د اکاهو نه ماسره غوږ جنګولو - دکنډ و اچولــو

طریقه هم ورته اوخوده - دده نه به هم ډیرے اغشتے - د
ګورے په سیزن کښے به هم کچه تارونه ګانړو ته ورکول.
هرے ګانړۍ نه به موګوره اغشته - خو داګورے یوا
ما نهٔ شو خوړلے - رسد په رسد به بره تله - زما
په حلقه کښے که به چمیار وو نوکال دوه جوړے
تنور والو به پخے ډوډۍ - داسے سبزۍ والو به
سبزی - قصاب به پسته او بے اډوکی غوښه - خه
به درته وایم - ماچرے په خر شی پیسه نهٔ ده
ورکړے - غوښه به غوښه وه خورواېه ئے نغع -
جنت ګل چه دادومره درز غوبـل تا جوړ کړے وو.
تو بره به چا خه نهٔ وے یا زما ساده روره - چه منډ نړ
مات ئی اوهر چا لکه دلیونو شوـنړے ورکړے وی - په
خلوری ئے راغونړه ئی - نو بره دچا خه کار دے حـیـه د
جنتی تپوس کئے - یوازے داسے خوړل نهٔ کیږی - دالف نه
تر ے پورے دغه حال دے - ډیر ډډئے مهٔ لمتوکه - ماورته
او وے جنت ګله - چرے په دے خپلو نارامو ستومانه شوے
ئے - وے - او - داسے دؤکارونه هم کړی دی - اوس هم چه
رایاد شی - ځان راته ډیر ملامته ښکاره شی چه جنت ګله د
بے خونۍ کار دِ کړے دے - ضمیر هم په مخه واخلی او داسے
هم په بره نچوړی کړی چه دغه حالت زهٔ نهٔ شم بیانولے.
هغوئ بنه خلق دی خو وایه دخلقو چه پلاس راسره وو - راته به

ئے جنت گل خان وے - اوس خو لوئے وارۀ راتہ گوره جنتے وائی -

یوه ورځ زم یو کور له بجلی سمولو - ډیر د چیاکور وو - نارینه نهٔ وو - زنانه یه ډوډه شوے وے - اوچت یه دری کینے زم د سروکالے اولیدل - زړهٔ زم تینګ نهٔ شو - جیب ته مے اوخوړو بجلی سمه شوه - رادوان شوم - یو نیمزالے زنانه راته اوو ے -

بچیه چائے پخه ده - اوڅښنه بیا به ځے

ما ورته وے - مورے چائے نهٔ څښم چه راتلم څښکلے زم وه - وے ئے بنه ده دا لس روپئی خو واخله - کار دِ اوکړو - ما وے نه مورے - دا خو معمولی کار وو - زهٔ به اوس تاسو نه پیسے اخلم - ډیرے دعاگانے ئے راته اوکړے -

یوه ورځ د دفتر یو لائن مین راغے - غوږ کینے راته اووے چه جنتیه صیب زر روپئی غواړی - ما وے هلکه صیب یه زر روپئی څه کئی - وے ئے روژه - صبا بله ورځ اختر دے - څه سود سودا به کئی - یواځے تا نه خو ئے نهٔ غواړی - دهر کمپلینټ نه ئے غواړی - اوتنړیدم - راته وے - اوس کهٔ درسره نهٔ وی چانه قرض که - بیا تاوه وه پلاس - که دوه پیدا کړے اوکه درے - تاسره څوک ایساب کئی - فکر زم راغے چه فلانی له زم ډائرکټ تار راکوز کړے دے - څلور هیټرے ئے لګولی دی - ورغلو - ورته زم اووے چه چا شکایت کړے دے د دفتره سرے راغلے دے - رنګ ئے اووهر - غوږ ئے راڼز دے کهٔ

چه کینږی به څه ـ ما ورته وے ـ ورانه ده هم تاسو نه ده ـ هغږے سړے رم اوپیژند ـ هغه سړه به کوم ـ اوس چیا راوله ـ ما وے شے غلط دے ـ دوه درے زره به خو خا مخا جرمانه کینږے ـ وے نو بیا خبره ورسره اوکه ـ چه قیصه هم دلته خلاصه شی ـ ما ورته وے دغارے دِ غوږیدے نهٔ شم ـ تهٔ لږ په دره شه چه زهٔ ورسره خبره اوکړم ـ دے لاړ ما دے مرګړی ته وے چه وایه دوه زره ـ زهٔ به منت کوم ـ تهٔ به ښکړی ښکړی کے ـ په اخر کینے زما په ډیر منت به پنځلس سوه رضا شے ـ زر به صیب له ورکړے ـ اخر دے ـ درے سوه به ستا شی ـ دوه سوه به ماله راکینے ـ دکور خاوند چه راغے چه په دوه زره به کار اوشی ـ نو د درے زرو نه به بچ شے اوبله د بدنامے نه هم ـ چه فلانی غلا کوله جرمانه شوے دے ـ وے خبره هم داده : خوکم ئے که ـ ما دهغهٔ په مخکینے ډیر منت اوکه ـ وے ئے پیټی بند رم ئے ـ چه تهٔ وے نو ـ نو پنځه سوه ئے پرینبودے ما ورته وے زر د صیب شوے ـ درے سوه دهٔ واغښتے ـ دوه سوه ما ـ دکور خاوند هم خوشحاله شو اوراته ئے وے ـ بنه دهٔ چه تهٔ ورسره وے ـ که غورو تپه راغلے چه څومره به جرمانه وه او بدنامی لاتیر ے ـ مرګری راته اووے چه صیب وئ چه دوه درے کیسونه رااولیږه چه کارګذاری خو وی کنه ـ چه بره خو دا څوک نهٔ وائی چه تش راغونږولو ته ناست دی ـ کار هم کئی ـ په جیب کینے رم یو درے نمبرے پرتے وے ـ هغه

م ورله ورکړے ۔ دوزه ده منلې نهٔ شو وهلے ۔ داغه دخــر
په ځائے کولال ۔ ستومانی ورله اوکاږه چه اچئ بیا دمیډ څوکې تلی۔
دب به ئے چیش نــه اوځی ۔ پته به میاشت پس لګی۔

میاشت پس چه بلونه راغلل ۔ څوک دوه زره څوک پنځلس
سوه یو په کښے زرجرمانه شوے وُو ۔ ددے رومبو دوؤ خو درک
نګیدو حق دا زر چه جرمانه شوے وو ۔ دا ډیر غریب وو ۔
دیاړی مار وو ۔ سپین بږیرے ډیــر دحیا سړے وو ۔ دهیڅ درک
ئے نهٔ وو ۔ چرګ له دتبخی داغ بس دے دبل په لیدو اوتښیدو۔
مزکه اسمان پے اوچورلیدل ۔ په منډه ماله راغے ۔ دشرمه
م ورسره سترګے نهٔ شو لګولے ۔ ماوے چا ظالمانو به بره
شکایت کړے وی ۔ خو تاتــه خومعلومه ده چه تهوله خو
دوه باتــئ دی یوه کوټه کښے اوبــله بهر او بل زرروپئ
ورارهٔ نــه خو به ورسره هم وے ۔ نه کاکاجی که زهٔ وے
داسے به ولے کیدہ ۔ اوس څه کیدے نهٔ شی ۔ خبره کیبوټر
نــه ختلے ده ۔ ولے رواره ۔ اوس دقرآن تکے شو۔

قرآن په ســر داسپین بږیرے دفتر تــه لاړ او دصیب په
مخکښے کلیمه ئے درسته کړه او په قرآن ئے لاس کیښود چه دوه
باتــئ دی ۔ زهٔ خو مزدورکار یم ۔ زر به دکومے راورم۔ صیب
ورته په چغه اووے ۔ وے پاسه بوډا ۔ دامکر فریب دلته
نهٔ چلیږی ۔ غل قرآن په ســرکرځئ ۔ هم غلا کوئ هم قرآن

خوږئ . څه په حیا کېنې . کنې نو اوس به دِ داچپړاسي درپه دیکے کړي . داسپین بږیرے رااووت . په میدان کېنې په څادر قرآن پاک کیښوَد . برہ ئے اسمان ته اوکتل یو-آه ئے اوکه . په سپینو دکوئے غټے غټے رارواںے شوے . په سجده پرېوت یو شیبه پس قرآن پاک ئے په ډېر عزت په ترخ کېنے واغشت بنکل ئے که . او روان شو . ددفتر ولاړ کسانو کېنے چاپه برق برق اوخندل . څوک زهیر شو . ما خو وے . ربه مزکه او چے او ما پے ننباسے .

صیب سره په دفتر کېنے په دغه سات یو میلمه ناست وو . هغه ورته اووے .

چه څه بنیے خبرے به دِ کړے وے . کار که
دِ ورله کو اوکنه .

صیب ورته اووے چه

دا ډېر چالاک خلق دي . دا ته نه پیژنے
سپی سره چه مینه کئ نو بیا به درلسه
خوله ستی . چه څومره ډېل او دارل
کسئ . په حیا کېنے به ئے .

دصیب دا خبره لا. خوله کېنے وه چه تندے ئے په مېن کیښوَد میلمه خبرے کوله . دے نه هاں کئ . نه . نا . چه کوتے ئے وراوړے یو طرف ته اوغرپید . په منډه ئے هسپتال

ته یوړه - ډاکټر وے - دده خو شیبه کړئ شوے ده چه ساه تر ے ختلے ده -

دفتر کښے لوئے غم جوړ شو - صباله یولس بجے ئے جنازه وه - د سړک غاړے ته ئے بنګلی ځائے کښے ښخ که - کید ے شی چه د ورشاؤ د اخیال وو -

چه سړک ته ښه دے چه هر تیریدونکے ورته دعا کوی -

څو ورځے پس د سنګ مرمر په خانزه ما اولیدل چه د صیب نوم - د مرګ نیټه او ورسره د هغه عهده لیکلی وو - زه چه کله په دغے لار ځم - قبر ته ځا مخا اودریږم او د سنګ مرمر دے خانزے ته په غور کوردم -

بیا م هغه ټیر حالات رایاد شی - اوس خدائے خبر چه په قبر کښے به ورته د جنت کړکئ لرے شوے وی او که د دوزخ -

څه موده پس هم په دغے لار تلم - کوم ځائے چه د صیب قبر وو - پښه نیولے شوم چه نه قبر وو او نه د سنګ مرمرو هغه خانزه - هغلته کیټئ پلازه جوړه کړے وه - او د صیب د قبر په ځائے کښے د فلش د پاره کټ جوړ ے کړے وے - هیڅوک ته مو خیال لاړ - که د کمیټئ مزدورانو چرته ښخ کړے وی - خو ښه به وی - بیا م زړه له راغلل

چه د هغوئ په سر څه سنګه ښه ایښې وه - خدائے مه کړه - په ادوک مارو ئے خرڅ کړی وی سره د نورو اړوکو به ئے دل خس کړے وی - توبے رم اوخکے او په چغو چغو رم اوژړل - صیب خو هم ګنهګار وُو - هغه سره سم زهٔ هم - هغه مړشو او زهٔ په ډانګورو شوم -

ه

د تمپک د تورے غوڅ به سختن روغ که

مسلمان د آه په غشی کایل مهٔ شه

(کامګار خان خټک)

---

# که نادر شته

# قادر هم شته

---

خیر شه - خلیل خانه - تا خو د خانه د واده ذلمے جوړ
کړے دے - حجامت - استری کړے جامے او پالش کړے څپلئ اخدا
پاک مو دِ نه غلطه ئ - جوړ خوا ښے کړه ځے -

اشنا اوس به څه لاړ شو - لاړ هغه وخت تیر شوے دے
اوس خو بڼرہ کښے سپین تکیدلی دی - د مرګ استازی راپسے ګرځی
سیں اوړو له سرتند ے وهو - بنه نو بیا چرته - مرده - عمرخانه
پرین ده - جم له ځم - څه له ځے - جوارئ له ځم - ماو ے
رادوکئ خلقه - جم له ځئ - جوارئ له ځی - د تره زوئ ته م
وے - نیسه دے خو څه لوئید لے راته بنکاری - زر کړه چه دیو ... ا
ته ئے دسوو -

روښانے د مابنامه نه پس د خلیل خان کوټے له راغے - خلیل خان
ورته اووے - هلکه روښانیه ! ډیرے ورځے پس - او خان - کاروند
ټول یو ځائے ته راغونډ شوے دی - څه خو ګوړونه دی - څه

چارے - او د پاسه پے داړی جوارو وتره - سرګرولو ته اوزګال

نهٔ یو - په نهر کینے اوبه هم نشته - وائی چه نهر شلیدلے دے.

روښانیه چه داوبو سختی شی نو نهر به خامخا شلیږی - او چه

خلق چغے سورے جوړے کړی نو د ترلو الاباشی جوړشی - بیا

په دوه دوښره درے دوښره خرچ سمیږی - په دے سمیدو

کښے ډیر جیبونه ګرم شی - ګنا ورته نشته - چه داوبو په

سخته کښے نهر نهٔ شلیږی نو خوری به څه - خوخیر دغه چا

ګورګردن خپل دے - خپل خپل قبر کښے به څملی.

روښانیه ! د کلی څه حال دے ؟ خدائے شته - ورځے ډیرے

تیرے شوے دی - حجرے ته اوتے نهٔ یم - خان - بنه کڅے

چه حجرے ته نهٔ راځے - هغه د حجرو خوندونه اوس نشته - خلق

د خدائے د پاره د حیا خلقو له کارونه ګوری - کندے ورته کنی.

چه په دیګه پکښے سر د لاندے پریوځی - ګوره خان - خبره

خبرو له ورځی - زهٔ به ئے د بنو د پاره کوم - هسے نه چه

بدے له ورشی - مونږ غریب خلق یو - هر څوک راته په ډنډه

کښے خولے کیږی - وائی چه په تارم وس نهٔ رسی مړ به د

پلار کړم - سره ددے - درته ئے څکه وئیم چه ستا نمک خورم

او لا تر دے مو دوزی شریکه ده - پتے د کرم.

روښانیه ! تلوسه رم ډیره شوه - خبره زر زر او صفا

صفا کوه - ته تسله ساته - که څوک په ډوند رانه خرپن او کاږی

هم ستا نوم به وانخلم - بنه ده واوره قیصه داسے ده چه.

" زما قبض وُو ۔ سات په کړئ خیته کښې رم درد راوچتیږ
بهرته اوکوتله په تلو راتلو تنګ شوم ۔ ما وے راځه
حجره کښې څمله ۔ دکنو پټی ته په اسانه کوزیږے
راکوزیږے ۔ کټ کښې سملاستم ۔ بجلي تلے وه ۔ تیر
ماسختن وو ۔ تیاره وه ۔ نۀ چا اولیدم او نه زما
په کش کړپ څوک پوئے شو ۔ دوه کسه خوستا ترېوران
وُو او درې دا خوشي تش پیاسړی ۔ چه ستا نوم رم
واوریډ ۔ نو غوږ ونه رم نیغ شو ۔ یو ورته اووے
خلیل خان سنۀ سپین سپین روبے کړځي په ارام ئے
اوخوړه ۔ موږ چه څۀ پیدا کوؤ ۔ تهانړه تحصیل ئے رانه
خوری ۔ پټی مو څۀ اجاره ، څه ګانړه ۔ نۀ دده
دیواني شته نه فوجداري ۔ کار ورله کتل پکار دی ۔ چه
بیا لکه زموږ لنګوالے کړځي ۔ تهیک ورته په غاړه
کړول غواړی او که لکه د بیږ مو پرصری که ۔ دغه
ورله بس دے ۔ په خپله به ورله خوله چینګۍ ۔ او
ارتئ ۔

دسیکهه نه ئے تیلیا زوره ور وی ۔ یو په کښې
راواوداځکل ۔ چه دا خو زما دډیره وخته خیال وُو۔ خو
ستا دیرے مو لوبه کړموے نۀ شوه ۔ هسې نه
چه بد اوګڼږے بیا هم دونړه دونړه ترېوران ئے۔ نه
نه ۔ مار وژلے سنه دے او ترېور وهلے ۔ سنه دے۔

بنه خان ! چه خبره داده . وایه پروګرام به څه وی

ښنهٔ په غوږدو واورئ . هر کار ته به میټې راکاږئ . هسې

نه . لکه د بادرو دسپی په ملاسته او غاپئ . ځان

به ښهٔ ولیښی ساتئ . د پګړی پیښی درنه جوړ سه

شی . چه په غمو غمو پانده ئے . لارے به توے

بندے ساتئ . کږ کټے . لښ او دام به هر ځائے

پراته وی . چه په کومه راڅی . چه د دوارو پښو

نه کیږ وی . سارنه به کلکه کوئ . لکه د غرے

د باسنګی به په یوه پښه ولاړ ئے . په لږ کش کړ

به مو غوږونه لکه دهوسئ لک کړے وی .

فرمانه ! د شریکے پوله به ته وهے . روښانی

ـــه به په ظاهره راشه درشه ښه ساتئ . ستائے

به خلیل خان . په کنځلو کینے به کنځل کوے هغه

هم په وار کومی چه چم کاوندو خبرشی . ګوره

کله چه میلمه ورسره وی . اوبهٔ به خړے . او په

نهٔ څهٔ خبره به ترے حیا توے . اوکه میلمه څه

اووے . وهے به ئے نه . کریوان به ورله ریخانګے

کئے . اوکه دمیلمه دننګه شرمه ئے لاس واچوو .

نو بیا پوهه شه چه سرے کیږ دے . شرمول به

کوے . په یو ساه به دومره چغے جوړے کړے چه

عالم ادم دربانده اودرینږی . دهړے سوړے نه

به ورته مجئ د مېږے راپاره کړئ. سپی به ورلېږے کړئ
ایمان به دِ ګودم چه کور اوګور او پیښبور پے دڑے واړه
یو کړے. خلاص ئے. دعا کوه. جامے به ئے
هر وخت لخیره په توتانو اوېزانده وی.

خان - او زما به څه کار وی. ته خو هسے هم
چرسی ئے. د خلیل خان زامنو سره به کلکه یارانه
جوړه کړے. په یو ساه به ورته خان خان وائے.
او په صفت به ورته مزکه او آسمان یو کړے. کرځے
به ورسره. خدمت ته به کلکه ملا تړے. کله پنځه
شوتل راوړے کله جرګه او کله هتئ بازار. چه
د پلار او د کور د خلقو ئے یقین خاص شی چه دا
خو ئے کلک یار دے نو بیا رو رو تش سګرټ ست کړے
کله ډک او کله د پوډرو. واخله دا د پنځوسو لوټ.
او کله چه دِ پے د پوډرو سګرټ راښکه. نو بیا
راځه زیرے راوړه. اخلے به د زرو شین غاړے
چه نهٔ درنه مُلا شی نه ای شی. د پلار مینه ورکه
کړه چرسی شی.

د خلیل خان زامن سبقونه وائی. داسے به
التو غلتو به ئے سر کینے چه لوچه باز شی. دم باز
شی. د ښځے تو ښے نه اوځی. سبق به ډاکه پریږدی.
او ګرځی په لوړو او جورو چه د خوو ئه سکئ اوکاږی.

لکه اوکابړی - ددهٔ څه خیال دے - زامن به صباله سړی
شی. ولے مونږ ئے مړه اولیدو - دا ارمان به ئے
ترسره نهٔ شی . نشو تماشو له به ایساب غواړی
اچئ به د پلار ګریوان ته لاسونه . هر وخت به
ورکړه میله ګرمه وی - او مونږ به ئے د لوړے نه
تماشه کوؤ . نوکونه به جنګوؤ - اوکانړی به پکښے
لا تیرے دبکوؤ - اوکه خیر وی دوئ به سرغوښے
چاره وی .
خلیل خوهم ځانی د تږب چالونه کئی - او ریدلے
م دی چه دغوی په ارتوتو کښے په پتوتمکه مارې
کئ - هلکه دوسانو - تاسو خوهم لوبغاړی ئے .
یارانه خو به د زامنو سره د اکاهو نه جوړه شوے
وی . په ناسته پاسته به ورسره منډنې مات شوے
وی . نو لوبے ته به ئے کینوئ . په طریقه به
پے پیسے بائلے چه پوئے نهٔ شی . لږ ے کهلے . ډیر
بائللے چه خوند ئے دخولے شی نو پوئے شے چه
پمن شو . ګرځئ به په تاسو پسے . دایساب غم به
نهٔ کوے . ایمان به موګورم چه دپتو نه ئے
برکے ته کے . وے ئے ځئ اوس ورځئ . څو ور ځے
پس بیا حل شو . په برق برق ئے اوخندل او پشا
لاړل ."

خان خبره کړم درته ټوله صفا صفا اوکړه . ګورے دد
سړو نیت ښهٔ نهٔ دے . خپله تابیا کوه . حجرے ته د
ماښام نیس مطلق مه راځه . د ورځے که چرته ضرور
پیخ شو . چه مړګړے درسره وی . د کشرانو خانانو
به هم ډیر خیال ساتے . غیرغماز سړه به ئے نهٔ
پریږدے . قدم به په ډیر احتیاط بږدے . او
اعتبار به په چا نه کوے . د ازل نیک خو بد لیږی
نه . خو بنیادم په خپل وس پړ دے . ډیر یوه زړے
ئے خپل مال خپل عزت درته اورشوے دے . ټوک
ئے زغملے نهٔ شی . خو ځه خان . که نادرشته نو
قادر هم شته . رب دِ ویښتهٔ ازار مهٔ کړه ."

خلیل خان کټ کښے اوغزیده . د دوښانی په خبرو
سوچونو او فکرونو په مخه اغشتے وو . په مزغو ئے
سرخیده . چه راځه ځان ورته لیونے کړه . دا ددوستئ
عمر به ترڅو تیر ے . چه د کومے بلا نهٔ خلاصیږے نو هغے
ته ورتږ غاړه وځه . مرګ خو یو ځل مرګ دے . د دوئ دلاسه
د ساعت ګړئ مرګ نه خو به ښه وی . که سرے سترګے ئے
اولیدے . کیدے شی د کریوانه لاس اوکاږی . که کولئ ماله
شته خو دوئ هم د غو ښے دی . ځه چه څه تے جوړیږی . چه
ارمان ئے اوړشی . خو نه . کله به ئے زړهٔ ته راغلل . چه
هوښیار پلار . پخو له دشمنی نهٔ ګوری . ټوپک ورته پهٔ غاړه

کټۍ نه - چه ژوند ئې په ترازه شي - که پاک رب د دوئ نه سړي جوړکړل نو دا د برهان او د فرمان مرک دے - دا ئې خوبته شوه - کلیمه ئې درسته کړه - اول خوئې زامن لرے کالجونو ته کړل - هغوئ ئې په زوں زیر پوئې کړل چه دکلی د راتلو مینه به نهٔ کوے - زهٔ به مو څو په سویمه خبر اخلم. خرچ خراجات به دررسوم - ستاسو به بس یو کار وی چه ډیر سبق اووائې - چه پاک رب مو سړي کړی - کلی کښې به کهٔ چا تپوس اوکړه چه وارهٔ خانان نهٔ ښکاری - دهٔ به وے دا سے وخت راغلے دے چه هر څوک بے سره شوی دی - خپله خپله منی - مونږ خوغاړه خلاص وُو باقی سود او زیان دهر چا خپل دے په مونږ هسے ټیریده - کهٔ ښه ده اوکهٔ بده -

خلیل خان به سحر وختی تانګه کښې تحصیل بازار ته به تلو. ورځ به ئې تیروله او ماښځین به واپس کلی ته راتلهٔ - دغه ئې دستور شو - کله خو به ډیر خوشحاله وُو لکه چه داؤ ئې ګټلے وی اوکله به زهیر وو - لکه چه پیسے ئې بائیللے وی - کونګوسے خورشو چه خلیل هر سحر جوارئ له ځی. تربوران ئې ښه خوشحاله وو - چه ځه کهٔ خیر وی په کور ئې خره ارغړلید لے واخله - سړے به زر سر اوخوری - او کله چه په میاشت کښې به ورځ دوه غیب شو. نو د خلقو یقین به کلک شو - چه اوس لوئې پرونو له ځان دسئ - کال کښې به ئې څه مزکه اجاره کړه او جریب دوه کمانړه - کور ښځے هم

ورته په ژړا انګولا وے - خویندو به ورته کله زاری کوله - او
کله زور - ورته به ئے وے - دسترګو لګولو شان په قام کښے پاتے
نهٔ شی - دوست دشمن - لوئے وارهٔ ټول په یوه چغه دی -
چه خلیل خان جواری کئی - وئی دی چغے - خپل مال دَ وکوم
دچا نه خو څه غوارم نه - دخلقو په زړهٔ څه له ے دلیږی -
دوښانے راغے - ورته وے

خان - فرمان خو نن شریکه پوله دهلے دهٔ - ستغے
سپورے خو مو یو بل سره اوکړے - وے ئے ورشه
هغه تورزن نائیک ته دِ اوازکه - چه دنن او ددغه
پته اولګی - خان هغه کفر ئے اوغړه وُو - چه په
خولے ئے نهٔ جوړیږی - په پولو وهلو ئے کارنشته
هسے بهانه ده - غرض ئے تا کښے دے - خو فکر
ډیر کوه - "

دوښانیه ! دوئی به په یو کال کښے څومره پتیے لاندے
کړی - دغه مرله دوه - پاک رب دِ داسے بربنډو سره واچئی
چه په خوږو ئے پوئے شی -

دوښانے په سپر کښے اودهٔ وو - ټوله شپه ئے اوبهٔ خوړ
کړے وُو - ډیرے دمه وُو - که دکټ سره که چا په محنه کړے
وے هم به ویښ شوے نهٔ وُو - د خان لینده وال یو بندے
درے وال ورسره کټ سرته ولاړ وُو - څوک راغے او لاس
کښے اوچت که - پخوا خو داسے بندے جړے نهٔ وے - نهٔ یه

دیوالونه وو - او نهٔ به ورونه ـ د پښتو لارے به وے. هر سړے به هر وخت پے تیریدے شو - چه کله دے په سمی ویخ شو نو ټوپک نهٔ وو - خبرے هوا اوخوړه - چه د خلیل خان ټوپک چا پټ کړ - هغه تربور برهان ورله راغے - ورته ئے وے.

خلیل خانه ! خفه یو - ټوپک اوړل او بنځه بوتلل یو شے دے - رور عزیز رم ئے چه په سختهٔ دِ پکار نهٔ شو نو بیا خو دهر چا دوره خپله ده - زما دا کلک یقین دے چه دا کار حسینی کړے دے - که د ازموی زرهٔ چاله ورکیږے نو په بد خیال زموږ په نوایه څوک تیریدے نهٔ شی - زهٔ به درله کوم - په قرآن او په طلاقو به درله شهادت کوم حسینی که هر څومره بربنډ او لغړ دے او جنګونه په بیعه اخلی - که د شکر جامے پے ماتے شی - نو ال اولاد ته به نصیحت کړی - موږ خانانو ته ئے لاس واچوؤ - او که دغسے مو پریښود - نو ئے ټوپک یوړ صباله به مو د بنځو نه پرونی کوز کړی."

برهانه - زهٔ فکر پکښے کوم زما خو بغیر ستا سو نه بل څوک نشته - تربور لا څهٔ کیږے - نو ر به داسے راغلل چه دا کار فلانی کړے دے چه ددوئ به ورسره خپله اره جره به وه - دهر چا خپل عرض وو - ادلے بدلے ئے زما په سر اغښتے -

خلیل خان روښانه را اوغوښت ۔ ورته وے په دوځه ۔ دا لینده وال ټوپک څو دېنځوسو روپو وُو ۔ واخله داسل روپئ ۔ هم دغسے ټوپک راوړه او مشهوره داکه چه ټوپک رم خورئ ځان سره کلی ته اوړے وو ۔ دوئ څو ما حسینی سره اړمه وی ۔ حسینے دے بدمعاش ۔ څو کچه کاروته نهٔ کئ ۔ اوکړم ورته اووے تو داسے لس ټوپکے خوبه راکړی ۔ روښانه! خـر ته جبه نهٔ شم خودے ۔ سم اومانیـکر به راته کوځه کښے ولاړ وی ۔ کاروته به راله کوری ۔ په ځان ئے ولے تهانړه کم ۔ داسے سـړی نه لرے یا غلے ۔ ددوئ ورسره خپله اړه چرې ده ۔ زما په اوږه ټوپک بڼدی ۔ که زهٔ خراب شوم هم ددوئ کار اوشو اوکه هغه ۔ بیا هم به دوئ بریت تاوه وی زهٔ بنه پوئے یم چه دا کار هم دوی کړے دے ۔ دوئ تنستے بودی د لرے نه خورے کړی دی چه کله به گیر شی ۔ روخانی ورته اووے ۔ خان ددوئ د صلاح گانو خبرے ما تاته لا بخوا کړی دی ۔ بے کوره مهٔ کړیږه ۔ چه ډوب نهٔ شے ۔

ورځے شپے تیریدے ۔ دخلیل خان ملکان یو د ډاکټرئ بل د انجنیئرنګ او دریم دایګری کلچرل په اخری کلونو کښے وُو ۔ ښهٔ قلار وُو ۔ نهٔ ئے په کالجونو کښے مستئ کولے او نه بهر ۔ بس خپل سبق ته دِن شوے او دکامیابئ په لور روان وو ۔ پلار چه به ئے دنتیجو نه خبر شو ۔ نو د الله پاک شکر به ئے ادا که ۔ او په زړهٔ کښے به ئے وے ۔ کهٔ خیر وی جوار کړ خلیل خان

به اخری داؤ کهتی. دکور بندیان ئے په دے تیارهٔ کښے ساتل چه بنځے به په دیوال غرئ اوچتے کئی. چه خورے تاته ئے وایم خو چه خبره امانی. هغه بله بلے له او بله بلے ته. هغوئ هیڅ په پته نهٔ پوهیږے چه خلیل خان څه کئی. بس کلک یقین ئے داوو چه جواری کئی. او په کال کښے دجوارئ دپاره مزکه اجاره کئی او کانړه کئی. محمد سر به ئے شوکول. داسے میان ملا. مشر اوکشر ئے نهٔ وو پریښے. چه په هغوئ ئے خلیل خان ته نصیحت نهٔ وُکړے.

مشر زوئ ئے داکټری کښے پاس شو چه خبر شو نو یارانو دوستانو له ئے درنه دوډئ اوکړه. برهان او فرمان ته ئے هم ست اوکړ. وے به چه نن ما غټ داؤ کټلے دے. دنن نه پس به بیا جواری نه کوم. عمرخان ورته اووے.

یاره تا باندے څه بلا شوے ده. په خپله جوارئ کړے. زامن دِ هم په بنه رانه غلل. خدائے خبر چه چرته به سووالی بروالی کرځئ. دجوارګر زامن به جوارګر نهٔ وی څه. دحیا سړی خو به نهٔ وی."

عمرخانه قیصه داسے ده. نه رِم تر داخپله جواری کړے ده. په خپل یقین رِم بال بچ هم دالتو غلطو نه ساتلے دے. هر سحر به تحصیل بازار ته په دے تلم. تربورانو به راله پولے وهلے. هغه بربنده کنځل به ئے کول چه کنی دے په خپله پښتی ته راشی. او

توبه کرمه شي - د پولو په وهلو نه وم خفه - کال کښې به دوئ چه ډيره کيره کی - خو دغه دوه مرلے - کنځل م زغملے نهٔ شي - تو دد مے د پاره به د کلی نه بهرتلم - زما په زړهٔ يوه مدعا وه - مقصد دو چه پاک رب م هلکان ځائے ته اورسی - دوئ م لرے کالجونو ته کړل - هسے نه چه څوک ئے په نشو تماشو راواړوی - پېتی اجاره اوکانړه په دے به کول چه د هلکانو د خرچ خراجاتو کار جوړوی - هغه چه تا ليدلے وم - چه جم له ځم - چوارئ له ځم - هغه م هلکانو له اسباب اوړهٔ - شکر دے د جليل نن نيتجه اووته - لخيره ډاکټر به شي - عمرخانه اوس ته وايه داؤ م کتلے دے اوکنه - خبره به م درسره تولو کړے وه خو روخاني سره م لوظ کړے دے چه حال به نهٔ وايم -

جليل خان ډاکټر شو - بل انجينير - اوهغه بل په زرا عتو کښې افسر اولګيده - پلار به ئے په جامو کښې نهٔ ځائيدو - چه جمعه په جمعه به دوئ په خپل خپل موټر کښې کلی ته راتلل - ښځه اوخوينده ئے اوس پوئے شوے چه خليل خان به ولے دا دومره غنے په ځان راخکے - د جمعے په ورځ به د کلی ناروغه ښځے نارينه ، واړهٔ زاړهٔ به دهٔ له راتلل - بغير فيسه به ئے هر مريض ډير په اخلاص او مينه محبت کتهٔ - نسخه به ئے ورته ليکله - غريبو له خو

به ئې د دارو اغښتو د پاره پیسې ورکولې او چا له به ئې د سپېلو

ګولئ او شربتونه - دعاګانې به ئې ورته کولې او هغې

خلیل خان ته چه به لویو دردو بجوارګس وهې - اوس ورته

په ډېر دردناوې ګوري اوواتې .

" خدائې پاک دِ هر چا له داسې زامن ورکړي لکه

چه خلیل خان له ئې ورکړي دي - "

د برهان او فرمان اوس عمر پېښتا وُو - د هغې مستو

او خرتینو اوس پرېوتي وو - اول خو به ئې افیم خوړل -

خو چه د افیمو د وسه پرېوتل نو اوس د پوست پکه د

اوبو ګوټ سره تیرئې - د بغض او د بدنیتۍ دلاسه ئې

شکلونه مسخ شوې دي - زیر پړسیدلي مخونه او مرو

ئې بجوړې کړي دي - هوخې او د جوړونو دردونه ورپورې

انښتې دي - کوتک په لاس تیټ روان وي - دوئې به هم

د جمعې په ورځ جلیل ډاکټر پله به راتلل - خلیل خان

زوئې ته اووې .

" او به دِ نه بخښم - که د دوئې په عزت کښې دِ

فرق راوست - دا زما رونړه دي - دوئې ته

به داسې ګورې لکه څرنګ چه څپل پلار ته

ګورې - "

ورته ئې وې .

خان جي تسلي ساته - دا زما ترونه دي - که کله د دوئې

په عزت کښې فرق ډېر اولید. نو خدائے پاک د مزکه اوچتې او مونږ ډېر پکښې ننه باسی."

برمان خان ته جلیل او هغه نور د وارړه وار په وار راتړغاړه ایستل په سر سترګو ئے بنګل کړل. سترګو ئے دارے اووهلے. څوک پرے پوئے نه شو. خو کیدے شی چه په خپلو کړو ستومانه شوے وی.

رحمٰن بابا وائی سه

سرنوشت د سړی خپل دے
یو عیسٰی وی بل دجال شی



د عبید الله خان افسانوی نثر پارے د پښتو هغه بے بها پنګه ده چه پښتو به تل پرے ناز کوی - سوچه پښتو محاوره، مکالماتی انداز بیان د متلونو بے ساخته او په ځائے استعمال او معاشرتی اصلاحی موضوعات د دے کتاب منفرد خصوصیات دی -

ایاز داودزے

یوکولمبس نادرخان بزمی په کال ۱۹۵۶ء کښے عبید الله خان دریافت کړے وو - او اوس دادے څه د برده څلویښت کاله پس بل کولمبس همایون هما هغه بازیافت کړو خو چه دده خط کوټ ته اورسیده نو دغه د هغه د څلویښتیٔ ورځ وه - خو ښه وه هما د عبید الله خان دافسانو دوئمه ناچاپه مجموعه آئینه اوموندہ، چه د ښتونکو د وړاندے ده - ماته خو داسے ښکاری چه هغه په ژوندون هم د بدشکلے معاشرے ته همیشه ائینه نیولے ده او په مړونی هم ورته د آئینے د نیوولو نه، نهٔ صبریږی -

قمرراهی

د محترم عبید الله خان افسانے ماته د پښتنو داولسی ژوند داسے ښکلی تصویرونه راپه وړاندے کړه چه زه او د ښار یئے په ماحول کښے لوئے شوے زما دکول بے شمیره نیکونکی ترے بے خبره پاتے شوی دی او دا دعوی په موږ او زمونږ په وختونو لویه پیرزوینه ده -

عظمت هما